د ۱۳۹٤ش کال شپږمه گڼه

(دلو- حوت)

# کندهار

د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست دوې میاشتنۍ خپرونه



## د میني او حسن معتکف شاعر

"د وخت ضرب" له شاعر هـ. عطايي (ملا) سره مرکه

## د شهید انجنیر عبداللطیف آشنا د پنځم تلین په مناسبت
## د افغانستان د اسلامي جمهوریت د اطلاعاتو او فرهنګ وزیر پیغام

د ستر ځښتن په ستر او سپېڅلي نامه

جنګ ښامار دئ او په خپله وازه خوله انسانان خوري، جنګ وینې بهیوي او ککرۍ ګېلوي، زموږ د وطن جنګ موږ ټول خوړلي یو، زموږ د حساب ککرۍ ئې وژلي دي او په خپلو منځونو کې ئې ورور له ورور سره لاس او ګرېوان کړی دئ. د لسونو کلونو راهیسې موږ د دې خونړۍ او وژونکې پدیدې سره مخ یو، خو اوس هم نه یو خلاص. اخیر ولې او تر کومه؟

نه ده معلومه، پوره پنځه کاله مخکې د کندهار درونډ فرهنګپال، لیکوال او د خلګو خدمتګار شهید انجینر عبداللطیف اشنا چې هغه وخت د ولایت مقام مرستیال وو، ځانمرګي برید شهید کړ. هغه وخت له خپل هیواده او د خپل کور کندهاره ډېر لیري وم، د خبر اورېدو ئې ولړزولم، خواشینی ئې کړم او وئې ځورولم. دا داسې وخت وو چې نژدې هره ورځ کندهار د یوه خونړي برید شاهد وو، هره ورځ د همدې ورځې په شان دې ناخوالو افغانان ځورول، خو د اشنا غوندي د سر سړو بیا خلګو ته تکان ورکوي.

ما شهید اشنا له نژدې پېژندی، یو فرهنګپال، پر وطن مین او صادق شخصیت وو، خو د وطن دښمنانو هغه د خپلو څخه بېل کړ. شهید اشنا نه یوازې ښه فرهنګپال او لیکوال وو، بلکې یو ښه مدیر هم وو او تل ئې هڅه کوله چې په دولتي ادارو کې اصلاحات راسي. خو نیمګړې دنیا ئې دا ارمانونه په خاورو کې ور سره ښخ کړل.

زه د هیواد پر ټولوځوانانو ږغ کوم چې د داسې سترو شخصیتونو پر قدمونو پلونه کښېږدي او د دې وطن د خلګو له پاره ربښتینی خدمت وکړي. لایزال ځښتن دې د هیواد د ټولو شهیدانو تر څنګ شهید اشنا ته فردوس جنت او دوستانو ته د زړه صبر ورکړي.

په درناوي
عبدالباري جهاني
د افغانستان د اسلامي جمهوریت د اطلاعاتو او فرهنګ وزیر



# کندهار

علمي، تاریخي، ادبي او ټولنیزه مجله

د امتیاز څښتن: د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست

دریمه دوره
د ۱۳۹۴ش کال شپږمه ګڼه (سلواغه - حوت)
پرله پسې ۷۳ یمه ګڼه

مؤسس
محمدولي زلمی

سرپرست چلوونکی
مطیع الله روهیال

کتنپلاوی
ډاکټر عبدالرازق پالوال
څېړندوی شېرشاه رشاد
حیات الله رفیقي
عبدالکریم طالب
فضل محمد پنهان
مطیع الله روهیال

کمپیوټر چاري
عثمان عاصي

## څو ضروري یادوني

- کندهار مجله اسلامي او ملي ګټو ته زیانمني لیکني نه خپروي.
- کندهار مجله د مجلې د ټاکني لیکني معیار سره سم د لیکنو په اصلاح کې د لاسوهني حق لري.
- را استول سوي لیکني بیرته نه ورکول کېږي.
- هره لیکنه د لیکوال خپل نظر څرګندوي.

**په هیواد او دباندي کې د مجلې بیې**

هیواد: ۲۰ - افغانی

پاکستان: ۵۰ - کلداري

## کلنی ګډون

هیواد: ۱۲۰ - افغانی

پاکستان: ۳۰۰ - کلداري

نور هیوادونه: ۸۰ - امریکایي ډالره

پته
علامه حبیبي واټ
د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست
د کندهار مجلې دفتر
تلیفون: ۳۰۰۱۴۴۰

# فهرست

## څېړنه



## شعرونه



## ترجمه



## خاطرې

# زما د امید گل

پسرلی دئ د لویو غرو لمنې شنې او گلونه غوړېږي ...
زرکي په غرو او بلبلان په باغو کي د نوي موسم زېری کوي ...
پر دښت د رېدي گلونه د سهار و نسیم ته ښه راغلې وايي ... ډک سیندونه بهېږي...
هر راز بوټي شنه او زرغونه ښکاري ... خوښه خوشحالي ده.
وړوکي ماشومان غورځي، هوسېږي، نوي زلمیان په خورا ورین تندي، د قدرت ښکلي مناظر گوري، د شېرین وطن د طبیعي آزادي فضا په ننداره بوخت دي ... اما ویش ! دا نو څه ...؟
زما د امید گل، لا هغسي مړاوی، مړژواندی دئ ... !
آ د سهار ښکلې نسیمه ! ... د بیدو گلونو ویښوونکې !
ته هم په ظاهري نقش او نگار غولېږې ...؟
زما د امید و خازه گل ته چي د ژمي په ژلیو ژوبل ژوبل سوی، هیڅ گذر نه کوې ...؟
هو ! زه بدبخته یم، هیڅ کړه وړه مي نسته ...
آه ! هغه د امید گل چي ما د ژمي داوږدې شپې په خوږمن زړه کي ساته، او د پسرلي د نسیم په امید مي نازاوه ... اوس ...
بلې ! اوس و چېږي ... نو خود زه بدبخته یم !
ولي چي اوس لا د پسرلي لومړی سر او ټوله گلونه په امید دي ... غوټۍ مسېږي ...
اما ! زما د امید گل مړاوی دئ ...
یه ! یه ! ... اې د پسرلي نسیمه !
که نور څه نه وي، دا خو هم یو د هغو گلو څخه دئ چي ټول ژمی ستا د راتگ په امید ژوندی و ... زما خواشیني زړه ته خو وگوره !
البته امکان لري چي دا بې وزله او بې خواخوږي گل به هم یو مهال پر غوړېدو راسي...
مگر د زمانې د نسیم ناخوالي به هیري نه سي ! لکه چي وايي :

**بلبل به خدای په گلو موړ کړي**
**نسیمه ! ستا نیمگړی نیت مي ژړوینه**

# د میني او حسن شاعر

هـ. عطايي (ملا)

**د وخت ضرب - حسن او مینه - خان او ځان - ملا او شاعر**

ګران روهیاله! زه خو اول د لیکلي مرکې هیڅ سلیقه او تجربه نه لرم او دوهم دا چې ژبه او قلم مي دواړه بې اختیاره او زه پخپله هم یو بې مهاره اوښ یم. که د مشخصو او چوکاټي پوښتنو په وانبکي بند سم نو مزه مي پیکه سي، خبري راڅخه ورکي سي او هسي بې خونده ګډوډ شی سم.

***

زما په خیال د چا شاعر سره د مرکې مقصد خو به دا وي چې ویونکي دي شاعر وپېژني، د شعر د هنر متعلق د ده نظري اپروچ او عملي تجربې ورڅرګندي سي، یعني د ده د نظر تول او د ذوق شپول واضح سي. د ده د کلام د آفاقي سیر سره سره د ده د انفسي جهان او نړۍ لید جاج واخلي. د ژوند او ذهن د شپو ورځو، د تیارو او رڼاوو، غمونو او خوښیو، جوړېدو او ماتېدو، خوږو او ترخو د کښته پورته حالاتو محرم راز وګرځي، یاني د شاعر سره په تاریخي، ذوقي، روحیاتي او عقیدوي ابعادو کي یو ګړی نیم ګډ سفر وکوي، تر ممکنه حده د ده په ذات ننوزي څو د کلام درک ئې ورته آسانه سي، د وینا تر ژورو پوري ئې ورسېږي او په ژبه ورسره پوه سي څکه د شاعر شعر خو د ده د ذات سره تړلې یو پدیده ده او دی (شاعر) بیا د خپل وخت او ماحول د عیني او ذهني شرایطو محصول یو موجود دئ، البته ډېر حساس او څیرک موجود، د خان (غني) په اصطلاح لوڅ بې څرمني بني‌آدم.

***

زما ګرانه! نو دا دئ زه به د خپل ژوند او شعر د سیر او سرګذشت لنډوکی ګزارش ستا او ستاد مجلې د ویونکو سره شریک کړم:

زه خو هسي په فطري توګه له هلکتوبه د شعرپسند مزاج خاوند وم، البته په دې نه پوهېږم چې ولي؟

تر څوانېدو دمخه مي خپله شعري قریحه او استعداد احساس کړ او د بلوغ له وخته دا دئ تر دم ګړیه په دې ستړي لګیا یم،

هغه وخت چي د سلطنتي ور ښمين استبداد کلونه ول او ما د ښار د يواځنۍ ورځپاڼې (طلوع افغان) او (کندهار) مجلې سره ادبي ملګرتيا پيل کړه (۱۳۴۶ - ۴۷) ځرنګه چي حکومتي مطبوعاتو د سپينو خبرو د نشر حوصله نه درلوده نو دې جبر زما د ليکني ژبه تر صراحت زياته د کنايو او استعارو، سمبولونو او رمزونو ژبه وګرځوله (او لا تر اوسه هم په دې عادت يم). زه په لږ وخت کي د خپل ښار په کچه د ځوانانو په قطار کي مخکښ شاعر حساب سوم او بيا کال دوه وروسته چي زه د ادبياتو پوهنځي ته شامل سوم (۱۳۴۹) نو هلته کابل کي مي د فاکولتې د پښتو ادب د ډيپارټمنټ د اکاډميکي مجلې (ورمې) سره رابطه قايمه کړه او د ډيپارټمنټ مشر پوهاند رشاد صاحب (رح) او د مجلې چلوونکي ډاکټر زيار په توجه او مينه به مي کله، کله پارچه نيمه شعرګوتې په هغه مجله کي چاپېدله، د ذوق ملګرو او مشرانو به زما دا د رمزونو او استعارو مهينه ژبه خوښوله.

کرار کرار مي د وخت نامتو مشرانو، شاعرانو بېنوا، لايق، اجمل خټک ... سره هم له نزدې تعارف او اړيکو مزي وغځېدل او په زياته - زياته زما هغه وخت ايډيال شاعر لايق خو د ميني او لارښودني غېږه پوره راته خلاصه کړه او هم دی مي د شعر امام او محسن مقتدا



د هـ. عطايي ملا تصوير، د ښاغلي عبدالناصر ريشاء د هنرمندو ګوتو محصول

وګرځېد. د هغه زما کلام دومره خوښ وو، چې زما په کچه ځواني، کې ئې خپل د (ځوان شاعر) مثنوي ډوله نظم راته ډالۍ کی، چې ډېر خوږ او ښکلی کلام وو، خو زه او لایق لکه هغومره چې په ذوقي لحاظ سره نژدې وو، په سیاسي او ایډیالوژیک (نظریاتي) اړخ کې هم هغومره لیرې سره پاته سوو.... په دې کلونو کې زما د نسبتي تره استاد رشاد (رح) د پلرنی، میني د تشویق او ترغیب په زلالو اوبو مې د ذوق او هنر نیالګي ښه وده وکړه او ګواکي پوره لوی سوم، زه چې اوس هم د ورمې مجلې د هغه وخت (۵۰-۱۳۵۵) کلیکسونونه ګورم او خپل یو نیم شعر او هنري انځور تر نظر تېروم نو دا مې یقین سي چې هلکه ته خو رښتیا هم یو وخت شاماد خان وې...

***

په ۱۳۵۵ کې ما فاکولته خلاصه کړه، په کادرعلمي کې د پاته کېدو استحقاق مې د یوې توطیې قرباني سو. ښایسته کابل رانه پاته سو او زه د هلمند و دښتو ته په نوکری (معلمی) وګومارل سوم. نور نو د ځپاند هلمند په ورکو غاړو د نامرادی د اوښکو پیدا پلونه ول او دا د رټل سوي ژوندي ځوانیمرګ شاعر وجود....

د ژوند شپې او ورځې سبا او بل سبا کېدې او تاریخونه اوښتل، څو بالآخره په روسی ودکا د بدمست غوایي تېره او وژونکي ښکرونه زما د ښوزلي اولس په سینه کې ښخ سول....

د سرو وینو ولې وبهېدې، کور او بدي، خانه او خرابي، قتل او قتال، ورور په ورور او پلار په زوی وژنه د ژوند معمول وګرځېدی، د قرون وسطایي شکنجو زندانونه په بې ګناه مظلومانو ډک سول او ملګرو (!) به دغه سر نا وهله چې دا انقلاب شا ته نه ستنېدونکی کارګري انقلاب دئ او دا دئ د مستبیدینو پر قبرونو د کارګر او بزګر راج قایم سو....

خو د نورماد پکیر باچهي لکه هغسي چې راغلې وه هغسي د نور په سرعت مخ پر ځوړه تله، خلقي انقلاب تیار د سلیمانخېلو توپ سو، شا ته ئې ډز وهل، دوړې جوړې او هوا خرابه سوه. کال یو نیم کي دا بې اسرې شاعر هم د حضرت جونا د دال چپاتي سوالګر سو او د چمن په بوړا بازار کې د سړک پر ترږه د لمر تر لمبو لاندي د شنو چایو د پخلي کاروباري سو (سماوارچي سو).

نازک پوستی مخ ئې کرار - کرار په ببره ږیره پټېدی او د لایق په ژبه (د هلمند د غورځنګونو عطا) ورو ورو ملا کېدی، د خلقت په ساز او د خالق په نیاز، دژوند په راز پوهېدی او د نشات ثانیه د جبر قلم پر چلېدی، څو د نصیب په حکم د ژوند د ترخو، یخو شپو او تودو ورځو دا دردېدلې مدرسه هم د (۱۳۶۳) کال د ختمېدو سره پای ته ورسېده او د حی لایموت (ج) په اراده د قوت لایموت د پیدا کېدو پچه وخته او د خوړمن ستوني اغزن فریاد د شیطان بزرګ (امریکې) و طلایي قفس ته د پناه اخستلو لاره ومونده.

البته دې سرزوره اوښ هلته هم د خپل هوډ عزت وساته پزه ئې و مهار ته ور نه کړه د ترجمانی او خبریالی تر مرداري غوړي ئې د ډرایوری وچه خواري او د لاس خلاصه

فرنګیانو د سوځ کیسونو ډلیوري غوره وګڼله او تخت (پوره) یو کم دېرش کاله د مسافرۍ او بې کورۍ ستونځوته تېنګ سو.

عمر تر (۶۵) واوښت، د واشنګټن د درنو واورو د اوږدو شپو شاقه خوارۍ ئې سرږي ورو پرسول، د بدن زور ئې تمام سو او تر خپل طبیعي عمر پنځلس، شل کاله مخکي زوړ او ناتوان سو، نو له ناکامه بیرته مخ پر کور سو، د ترکو عزیزانو د "غرغر مونګ ئې رامات کړو..."، پسته لارَه ئې زمزمه کړه او بیا خپلو پردېسو بچو ته، دا د تورلینګیو خریلو او تورمخو ږیریالیو د سرې کوټي و سپېرو دوړو ته راستون سو... او دلته؟؟؟

***

دلته کوټه کې د داسي المیې سره مخ سوم چي ټوله تېري ناخوالي ئې رانه هېري کړې، او هغه دا چي زه مجبور سوم د خپل څلوېښت پنځه څلوېښت کلن قلمي کار هغه یوه دریمه، څلرمه حصه چي د زمانو له تاړاک او حادثو له تاراجه بچاو سوې راپاته وه چاپ او نشر کړم، یعني هغه کار وکړم چي زه ئې قطعاً و کولو ته تیار نه وم. ما د خپلي دې مجبورۍ په هکله (د ضرب د کتاب په سریزه کي) کافي خبره کړې ده.

د شعري کلام دا مجموعه ما (د وخت ضرب) په نامه ونوموله، د وخت ضرب چاپ او نشر سو، خو ضرب ئې تر بل هر چا زما پر ذهن او روح کاري ضرب ولګاوه. داسي ضرب چي زه ئې د مردارۍ د نحوست و هغي کندي ته ټېل وهلم له کومي کندي چي ما کابو څلوېښت کاله ځان ساته (د شهرت او نامه مرداري)...

د کتاب اول ایډیشن تر کال لږ موده کي سولډ اوټ سو او اوس ئې ملګري د دوهم چاپ په تکل دي، دوی وایي د ویونکو رسپانس مثبت دئ او کلام د قام زړه ته لاره کړې ده. خو زه بل غم اخیستی یم او هغه زما د نام او نښان د پټ ساتلو د هوډ ماتېدو غم دئ، اوس



نو کله هلته د هیواد او کله دلته د بولان او خیبر تې وي ګاني او انټرویوګاني دي. او کله د ازادۍ او VOA راډیوګانو مرکې، او دا دئ تازه د همه غرضه. ځوان ژبور قلمدار، روهیال جانان هم راته پام سو او هغه بله ورځ ئې د شلو سوالونو پارچې رالېږلي دي.

چي باید خواب ئې ورته ولیکم، او زما؟؟؟

او زما دلته د اروپایي درانه متفکر نیچه دا کوتېشن په سترګو کي پروت دئ:

"که په افتخار او شهرت پسي ګرځې نو زما پند (نصحیت) مه هېروه او هغه دا چي له شرافت نه لاس واخله!!!".

او د ډېر عمر اشنا ستر شاعر خوانیمرګ پوشکین هم راته ګډ دئ:

"شاعره! د خلکو په ستاینه مه غولېږه! ځکه د مدح او تحسین نغاره ژر غلې کېږي، ته بادشاه یې باید د شاهانو غوندي په انزوا کي ژوند وکړې، اجر او مزدوري مه غواړه ځکه ستا مکافات بې له تا نه بل څوک تا ته نه سي درکولای...".

***

ګرانه روهیاله! دا زه چي د شهرت د مردارۍ د کندي چیغي وهم دا هسي زما ذهني واهمه او وسواس نه دئ، بلکي دې مسئلې ته زه ثابته حسي او عقلي کلیه لرم. ته ګوره، ستا د وطن (او هم ټوله نړۍ) دا موجوده دوړخي څېره یوار تر نظر تېره کړه، د خپل زړه په جذباتو او د خپل سر په عقلیاتو د دې حاضر جهنم د علت العلل جاج واخله، ولي دا نفسیاتي ناروغ (بنیادم) د خدای ور پیرزو کړي نعمت (ژوند) عزت او حرمت، سکون او آزادۍ خوندونه او رنګونه، خوشحالۍ او بېغمۍ پخپل لاس د بې عزتۍ او بدنامۍ، اضطراب او غلامۍ، د بدخوندۍ او بدرنګۍ په تراژیدي بدلوي؟ ولي؟ جواب واضح دئ: "د سرکښ نفس د بندګۍ په وجه".

خدای، عقل، تاریخ او تجربه خو وایي چي کله دا بدبخت بنیادم د خپل ذات یعني نفس د قدرت او دولت، شهرت او شهوت په مردارو شرابو بدمست سي نو د ژوند د آب حیات چینه څني ورکه سي، بیا به نو غوږونه لري خو په اوري به نه، سترګي به لري خو پهویني به نه، زړه به لري خو د احساس په مساماتو کي به ئې د **Ego** مرداري پچې بندي وي، سر او کله به لري خو د مغزو رګونه به ئې د ځانخانۍ په هوا پړسېدلي وي او د سالم تفکر صلاحیت به ئې سلب وي.

زما ګرانه! دا هسي شاعرانه انځورګري یا صوفیانه خیالبافي یا ملایي نصیحت نه دئ بلکي په خدای قسم ډېره جدي او سیریس خبره ده، تر ډوډۍ او اوبو یا حتی تر هوا او تنفس هم زیاته مهمه حیاتي مسئله او نجات طلب بیماري ده... او له دې حالته راوتل د نجات یوازنۍ لیاره ده.

***

اوس به د دې ښایسته مارانو (دولت، قدرت، شهرت، شهوت) زهریله حقیقت و دغي مظلومي انساني ټولني ته څوک ورڅرګندوي، دې بدمست ته به د میني، سړیتوب، قربانۍ، انسان دوستۍ، امن پسندۍ او حق پرستۍ د حسن او جمال سبق

څوک ورښيي، دا وحشي به څوک پر لار کوي؟

جانه! له هري خوا چي ئې راګز کړې چاره بس دغه يوه چاره ده او لار بس دغه يوه لاره ده چي د ده (انسان) د پيداکوونکي، جوړونکي خالق (ج) څخه ئې بايد د معالجې پوښتنه وسي.

د انسان اصلي (معنوي) وجود خو له لويه سره له دوو توکو جوړ دئ:

عقل او جذبات، په ده کي دننه د دغو دوو سسټمونو فعل او انفعالات د ده معنوي تشخص څرګندوي، ګواکي انسان بس سر (عقل) او زړه (جذبات) دئ، دا نور لاس او پښې، سترګي او غوږونه، خېټه، کولمې خو هسي د ده د همدې معنوي تشخص د حفاظت ډهانچه (باډی) ده، نو که د بنيآدم دغه دوه ځايه (سر او زړه) روغ وي هر څه به روغ وي او که دغه دوه ناروغه سول نو هر څه بې ناروغه سي. اوس نو پوښتنه دا ده چي د سر او زړه د سمولو رسالت زموږ په ټولنه کي د چا مسئوليت دئ؟

دلته نو خبره و دوو حضراتو ته تکيه کوي: حضرت ملا او حضرت شاعر.

ملا د خدای د ميني او حسن پېغامبر او شاعر ئې مبلغ دئ.

ملا د انساني جنت د جوړېدو په اصلي توکو (ميني او حسن) د انسان سر ورخلاصوي (د خدای د کتاب په ژبه) او شاعر د دې توکو (ميني او حسن) خوځنده جذبات د ده و زړه ته ور پمپوي او د دې جنت د جوړېدو له پاره عملي انرژي ور بخښي (د خپل هنر په ژبه).

جانانه! د خدای سره مينه يعني د انسان سره مينه، د خدای جمال يعني د انسان حسن، د خدای خدمت يعني د ده د مخلوق خدمت، خدای ته مسئوليت يعني د ده مخلوق ته مسئوليت، خدای پرستي بې له انسان دوستی نامکنه چاره ده، خدای ټوله مانا مينه، مينه، مينه او انسان ټوله مانا حسن، حسن، حسن. و ميني ته بې حسنه رسېدل ناممکن دي او حسن بې ميني درک کول ناشونی کار دئ.

د انساني ټولني لويه بدبختي خو دا وي چي د "اصالت انساني" الهي اصل جاهل مغرض (ملا) د خپلي خيټي مړولو او خ. و. ټ. ي سړولو په تکل کي و عزت، دولت او قدرت ته د رسېدو له پاره د جهاد مقدس نوم په فساد بدل کړي او د جهاد في النفس نوراني اصطلاح د فساد في الارض په شيطاني ترم واړوي، او شاعر بيا د حق ويلو خوږه انساني نغمه د خپل نامه، شهرت، معتبری، او کرسی، د شهوت د ارضاء په بيه، په يوه ترخه شيطاني مرثيه بدله کړي.

هې توبه د هغه قام د بربادی له مصيبته چي ملا ئې فاسد او شاعر ئې رذيل سي او په دې موخه د استعماري څواک او استشماري ځبېښناک د مستبدو نظامونو لومړنی مرګوني ضربې د دغو دوو (شاعر او ملا) و پېکر ته متوجه کېږي. مکار دښمن د قام پر سر او زړه واری کوي څو ټولنه بېواکه، کاواکه او ګنګس کړي، معيارونه بدل کړي، منافقت په صداقت تعبير کړي. شپې ته ورځ او ورځي ته شپه ووايي. قاتل شهيد، ډاکو اتل، پردی خپل او

خپل پردی، وطن فروش وطنپال، کافر مومن او مومن کافر وښيي. ځو د بې شعوره، مظلوم اولس خوږمني سترګې نوري هم د ظلمت په زهرېله ايرو بې نوره کړي.

روکيه! زما او ستا د غم پر کمبله وطن دا دئ ځلوښت کاله دغه ناورين ميخ زين دئ...

زما ياد سي چې يو وخت د سره استعمار (سوشيل امپرياليزم) مستبد قاتل نظام زما د وطن د انسان پر هډوکو د خپل برم مانۍ جوړوله او د دوی يو ملګری شاعر لګيا وو، د وطن د خلکو کاذبې ترانې به ئې ويلې، (دا ترانې ځکه کاذبې وې چې حضرت شاعر پخپله د دغه مستبد او قاتل نظام په ستو کي يوه ستنه وه)....

او نن هم پلورل سوي پر شهرت مين صوبه دار شاعران ... د بېواکۍ په پړو بند لاسونه پر بېواکه کرسۍ ناست د وطن د خپلواکۍ ويارني ږغوي ... او زما په ذهن کي تېر تاريخ تکرارېږي...

پرون هم يو لوی ږيري مزور ملا (د چلتاريانو شيخ)، د غدار ګاونډي په بې رحمه توپ زما د آبده ميوند ځلی ويشتی، ستا کابل ئې نړاوه او نن هم، هماغه لوی ږيری لګيا دئ د واتيکان د صليبي شيخ (پاپ) د فتوا په توره د دوی په تعبير د مورزاده دهشتګر (پښتون قام) د ايمان او غيرت سر وهي ...

ياره! آدمزاد څه چې د غرونو کاڼي او بوټي هم پوهېږي چې دا ټوله د کرنسۍ (روبلونو، ريالونو، ډالرونو) ګيم دئ او د ګيم بنياد د نفسياتي بيمار بنيآدم د دولت او قدرت، شهرت او شهوت د شيطاني تندي دوږخي تبه ده.

***

راته ګرانه روهياله!

جانانه! فکر کوم ستا د را استول سوو پوښتنو بنيادي سوالونو ته مې په دا پورته ليکنه کي کافي ځواب ويلی دئ البته په پاشلې بڼه.

خو دا لاندي څو ياداشتونه ستا د ځينو مشخصو سوالونو په هکله د لنډوکي ځواب په توګه عرضوم:

۱. ستا پوښتنه ده چې، په کومو خپرونو کي زما تيت پرک شاعري د کلونو په اوږدوکي چاپ سوې ده؟

ځواب: په ها خوا (بره پښتونخوا کي) په طلوع افغان ورځپاڼه، کندهارمجله، وږمه مجله، لمر مجله، عرفان مجله .... دې خوا په (لره پښتونخوا کي) لمبه مجله، اولس مجله کي.

۲. د وخت ضرب نه علاوه ناچاپه کلام هم درسره سته؟

هو، غنيمت څه سته او د سږکال په لومړۍ نيمايي کي به ان شاء الله را ووزي، خو دا بايد عرض کړم چې زه عادتاً کم کاره يا لږګويه شاعر شمېرل کېږم، د شعر ملکه کله، کله زما د جونګړي ور په وزر وټکوي خو اکثراً خاموش يم.

۳. تا ويل چې مخکنۍ شاعري کي دي د نظم خوا زياته وه او اوس د غزل پله درنه ده دا ولې؟

زه به ځواب درکړم چې نظم او غزل

دواړه صنفونه د شاعر د پیغام لیکي دي، خو غزل لږ نور هم دقیقه او نازکه فنکاري غواړي، ځکه تقریباً په هر بیت کې یو جلا (البته د غزل سره مرتبط) پیغام ارائه کېږي ځکه نو د افادې دا تنوع کار یو څه نور مشکلوي، خو خوند، ښکلا او اپیل ئې هم زیات وي.

ځکه نو نن سبا ناظمان شاعران ډېر دي او غزلبول شاعران نسبتاً کم، خو داسې یوه استثنا هم موجوده ده، مثلاً غني خان (رح) موږ ته ډېر نظم راپرې ایښې دئ او د ګوتو په شمېر غزل، مګر د خان (رح) هر نظم پر خپل ځای د غزل شانتې نازک او دقیق ښایسته او مهیج پیغام لري، زما په خیال خو خان د نظم په جامه کې د غزل کیفیت ځایوي، دا کمال د پښتو ژبې بل هیڅ شاعر نه لري... دغه خصوصیت په اردو ادب کې د حضرت فیض احمد فیض (رح) هم دئ...

۴. د شعاري شاعرۍ په هکله دې پوښتنه کړې ده:

ګرانه د دې حقیر فقیر په نزد شعاري شاعري اصلاً شاعري ده نه، د څو مکررو جذباتي وچو اصطلاحاتو یا د "شپون" په اصطلاح د بورا وزرو قافیو او ردیفونو یوه تکراري سترې ده، له سیاسي پلوه به ممکن څه زماني او مکاني ارزښت ولري خو له هنري اړخه شعاري شاعري ډېره پیکه او بې مزې شاعري ده (زما په نظر).

۵. د قوم د شعري ذوق په اړه مو پوښتلی یم، زما ځواب دا دئ:

لکه هغونده چې په پښتنو شاعرانو کې د خوند شاعر پیدا کېدل د اورو مالګه ده بالمقابل پښتون ویونکي او اوریدونکي په دې بازار کې سره او کچه متاع ډېره ښه پېژني مخصوصاً ځوان قشر په ښه کلام ښه پوهېږي او تود استقبال ئې کوي، (دا البته زما د کلام متعلق زما له دې یوکلنې تجربې څخه را پیدا سوی قضاوت دئ چې ځوانو شاعرانو یا شعر خوښوونکو ځوانانو، زما تر پېشبینۍ ډېر پورته مثبت رسپانس وښودی).

تېر کال چې زما دوست شاعر مشهور درویش دراني (د وخت ضرب) ایډیټ کاوه نو ما د مایوسۍ په یوه روحیه ورته وویل: "ها درویشه ته وا دې قوم ته به دا ژبه څه اپیل وکوي؟"

ده ویل وبه ګورو!!!

خو، کله چې د کوټې د پښتو په بین المللي سمینار کې د کتابونو په غرفو کې د (ضرب) پر کتاب د پښتونخوا د ځوانانو رش او د کتاب د نسخو شارټیج هره ورځ ډراماتیک انځور اخستی، نو درویش راته ویل، ملا څنګه سو؟؟؟ ما ورته وویل: لکه چې قوم اوس د کلام د درک ذوق خپل کړی دئ.

ځوانیمرګ مسه عصمت زهیر (باچا) خو هاخوا و دې خوا د ځوانانو د ډیمانډ په وجه زما د فوټوګانو په نشر د خپل فیسبوک له صفحې څخه د سینما فوسټر جوړ کړی (البته زما د ذوق او سلیقې بالکل خلاف).

۶. د سبک په اړه او د تقلید متعلق دې پوښتلی یم، دا سوال لږ ډېر غوښن دئ، زه به کوښښ وکوم چې پخپل مات قلم او ګونګه ژبه څه قناعت بخښونکی ځواب ورته ووایم:

جانانه! له لویه سره خو شعر د یوه لوړ

خیال او عمیقي تجربې، فلسفي خوندوره افاده ده، البته د موزونو تورو په قالب کي، داسي چي هم رنګ پکې وي او د غني په اصطلاح هم ډنګ پکې وي، پیغام او افادیت ئې د کلام په ښایست کي داسي پټ وي لکه د میوې صحي او بدني فایده چي د میوې په خوند کي پټه وي...، موږ اصلاً میوې د خوند له پاره خورو، خو ظاهره ده چي صحي ګټې هم پکي مضمري دي.

که دغه د میوې و مثال ته خیر سو نو مو د سبک په وراشه هم یو څه سر خلاصیدای سي، البته تر ډېر ممارست وروسته، زه د "خوجه ملک"انار په رنګ او خوند کي د بل هر ځای تر انار په واضحه توګه تشخیصولای سم، ځکه بار بار مي لیدلي او خوړلي دي، شعر خو ټوله دغه تکرار او یو شانتي ورته استعارې، کنایې، تشبیهات یعني بیاني او بدیعي انځورګري ده، خو ځیرک ویونکی په پټو سترګو د رحمان بابا او حمید ماشوخیل، کاظم شیدا او خوشال خان خټک کلام د رنګ او خوند په حواله سره بېلولای سي. دغه تشخص ګواکي د سبک د مفهوم عام فهمه افاده ده.

ما ته چي د پېښور د غاړي د معاصرو شاعرانو په سلو شعرونو کي د غني خان دوه بیته کښېږدې زه به ئې ان شاء الله پر بوی پیدا کړم، دغه معنا د سبک "فنګر پرنټ" یا د کلام "ډي. ان. اې". دې غاړي ته "سهېلي پښتونخوا" کي د پروفېسر راز مرحوم دغه لړګوټې شاعري د ده د ځانګړي سبک تشخص افاده کوي.

څومره چي شعر پخېږي هغونده سبکي ارزښت پیدا کوي.

د تقلید متعلق دا ویلای سم چي په مضمون او طرز افاده کي تقلید د شاعر مرګ دئ، او د شاعر د رشد او ترقۍ مخه ډب کوي. البته عام کلمات خو د ژبي پراپرټي ده او



اجتماعي حیثیت لري، خو د یو شاعر د ځینو بکرو ترکیباتو او یا سمبولونو کارونه (د مبتدع د حوالې او ریفرنس بغیر) یو نوع ناجایز تصرف دئ. آن تر دې حده چې سخت ګیره ملګري خو ئې یو ډول ادبي غلا بولي. د کوټې په سیمینار کي د ړوب ځو مینه وال ځوانان پر ما راکوړه سول او ویل یې یاره ملا دا ستا شاعري خو ټوله د ... د شاعرۍ کاپي معلومېږي.

ما د حیا په پرده کي ځواب ورکړ، هو ممکن څه مشابهتونه به وي، خو په داسي واردو کي د اصل او نقل د تشخیص له پاره غیر له زماني تقدم او تاخیر څخه بل ملاک نسته.

دلته ځوانیمرګ مسه، زهیر ولاړ وو او په ګونګه شانتي لهجه ئې د خدای د حق یوه خبره وکړه او وې ویل: ځوانه! د ملا شاعري په پیدا کېدو کي د ... تر شاعري دوه درې کاله مخکي ده خو په نشریدو کي وروسته میدان ته راووته ځکه نو دا غلط فهمي ایجادوي، چي نقل او کاپي به ئې کړې وي خو اصلاً هغه بل طرف ...

درویش دراني یوه ورځ په ټوکو کي راته وویل: ملا د جنجال مور یې، په دا ناوخته رامیدان ته کېدو، عالم دي په مغالطه کي اچولی دئ، ما ول یاره غم مه کوه زما سره د خپل کلام د ملکیت او سابقه دارۍ چاپي پروف سته.

۷. زما په کلام کي مو د موضوع د تنوع په هکله پوښتلی یم.

هوکې ګرانه! د موضوع تنوع خو یو فطري خبره ده، کله سیاست، کله فلسفه، کله تصوف، کله کله دانه نیمه ټوکه موکه، خو زما شاعري په بنیادي توګه د مینې او حسن د اصطلاحاتو فلسفي، تصوفي، روحیاتي توضیح ده، او د **EGO** ریاکارۍ، ځان پرستۍ، دوه رنګۍ استبداد او منافقت پر ضد بغاوتي جګړه ده. (او په دا اخره کي د فرنګي د سلطې ضد د مزاحمت رنګ لري).

ما ته شیخ، زاهد او ملا منفي کرکټرونه نه دي، خو د شیخۍ او وچ ملایي ذهنیت سره مي نه ده جوړه، ما ته استبداد منفوره پدیده ده د هر چا او په هر وخت کي چي تر هر نامه لاندي وي. ما ته په زوره په یو چا ړیره پرېښوول هغونده ناوړه کار دئ لکه په زوره ړیره ورخریل. زما د ملا سره نه ده پرته خو د هغه له شیطانه مي کرکه کېږي ("چل ملا کي نشته حرامتوب یې په شیطان کي دئ" ... غ. خان). ما ته توري سترګي یا شنې سترګي نه بلکي د سترګو د ښکلا کیفیت او د کتلو انداز مهم دئ، زما له یهوده بد نه کېږي خو یهودیت غندم، په یوه جمله کي د پدیدو د رد او قبول په خط کي زما د دوی له نامه او تشخص سره ډېر سروکار نه وي بلکي د صفاتو او خصلتونو او کردار سره اړم یم. زه لکه هغونده چي د ملایي استبداد راي سره ضد یم هغونده د سیکولري تشدد او ډنډه ماري تر پل سوي دیموکراسۍ سره په جنګ یم.

زه د بیان او عقیدې د ازادۍ معتقد یم خو بل طرف ته د اهانت او پر هغه د خپلي رایي د فورس سره مي بالکل نه ده جوړه، (نه پوهېږم چي خبره به مي ځونده افاده کړې وي)، په هر صورت شاعر ته یو مشخص،

عقیدوي او فکري لاین، فلسفي موقف، ځانګړی انداز بیان او اخلاقي دریځ ډېر مهم بولم.

۸. د میني او حسن، خان او ځان د سمبولونو په هکله مو توضیح غوښتې ده.

ګرانه! مینه او حسن خو زما د شاعرۍ اساسي توکي دي او زما په هره پارچه کي نظم وي که غزل، دا دوه توري قسماً یا کلاً، په صراحت یا کنایه یاد سوي او دا وجه ده چي زه په ځوانو ملګرو او یارانوکي د میني او حسن د شاعر په نامه متعارف سوی یم، (د وخت ضرب) د ټولګي په مقدمه کي ما د دې مفاهیمو پر فلسفي بنیاد او لغوي جوړ ښت لنډه خبره کړې ده، نور نو دا چي حسن څه دئ؟ او مینه څه ده؟ پر دې دوو اصطلاحاتو باندي سړی دقیق او مفصل بحث ځکه نه سي کولای چي دا مفاهیم له منطقي لحاظه د "محسوس غیرمعقول" حقایقو په کټګوري کي راځي، یعني داسي کیفي واقعیتونه دي چي منو ئې ټوله، پېژنو ئې ټوله، احساسوو ئې ټوله، خو پر ړغېدلای نه سو ځکه احاطه ئې د عقل په چوکاټ کي نه سي راتلای، مینه او حسن دواړه جذباتي کیفیات دي، عقلي افاده ئې نه سي کېدلای.

"زما د X سره مینه ده" یا "Y ډېر حسین او ښایسته دئ". کله چي یو څوک دا دوې مکالمې راته ووایي موږ ئې په مطلب پوره پوه سو، و هیڅ اضافي توضیح ته ضرورت نه پیدا کېږي خو دا چي مینه او حسن بالذات څه شي دي؟ او یا دی ولي له X سره مینه لري؟ یا Y ځنګه او ولي ده ته ښایسته ایسي؟ په دې اړه څوک څه نه سي ویلای.

زما شیخ الحنوتي (رح) به ویل: "چي مینه د زړه هغه جذباتي کیفیت دئ چي د وجود په هره ذره کي حاوي او طاري سي او حسن د یو نه بیانېدونکي توازن د اثر احساس دئ او بیا به ئې زیاته کړه چي دا توجه او توصیف هم ناقص دئ ... ځکه دا د انساني روح محسوس او ماوراء عقل کیفیات، مفاهیم یا اصطلاحات دي".

(نو چي زما د شیخ سر نه وو په خلاص زه به څه پکي ووایم) خو دا مي ایمان دئ چي د هستۍ ټوله بنیاد دغه د میني (جاذبه) او د حسن (کرشمه) ده، زموږ شمسي نظام او ټوله ګلګسي د دغه جاذبې پر قانونمندۍ ولاړ دئ، د ذرې (اتوم) په دننه کي د الکترون او پروتون معین جاذبي توازن دغه د میني او حسن د جاذبې او توازن مسئله ده. په پاړسو کي حضرت مولوي (رح) او په پښتو کي حضرت غني (رح) د شعر په سمبولیکه خوږه ژبه د دغو اصطلاحاتو ډېر ښایسته فلسفي توضیحات لري. عفوه غواړم خبره رانه اوږده سوه، خو د انساني سعادت او هدایت اوچت مقام په خپله بالذات پر مینه مینېدل او په حسن ښایسته کېدل دي:

**چي په مینه څوک مین سي، نه بېلتون سته، نه وصال**
**چي دا ځان له ځـــانه ووزي، بیا نه غم سته نه جنجال**
**که دي ســـترګي سي حسیني، حسن ستا د در غلام**
**دا خو ستا د سترګو رنګ دئ، دا ښایست او دا جمال**
**(د وخت ضرب)**

د خان او ځان د سمبولونو په هکله دونده درته ویلای سم چي "ځان" تر معمولي مروجه معنی هاخوا ته، کله کله د خودۍ په

مثبته معنا خو، اکثراً د خودخواهۍ، ځان پرستۍ **Self ego** یا نفس بندګۍ په منفي معنا استعمال سوې اصطلاح ده،

او خان؟ خان هم تر مروجه معنا ها خوا ته د (شاعر) شعري الهه ده، کله دلته کښته، د بني آدمو په خوا کي ما ته یو ډېر ګران او ښایسته زړه ته تېر ښیادم، او کله هلته پاس تر اسمانونو پورته (لامکان کي) زما د رب جانان له پاره په مستعار حیثیت یوه مستعمله سمبولیک افاده ده، چي په دواړو صورتو کي د مینې او حسن د مظهر او معبود په معنو کي استعمال سوی یو سمبول دئ. خان یعني د حسن د ښایست انتها او د مینې رب الارباب... (دا نو ټوله شاعرانه خیالي اوتي بوتي وبوله، خو د دې سره، سره د دنه هم یوه کیسه پکي سته، چي زه ئې د خپل وجدان په سترګو داسي واضح وینم لکه په سره غرمه کي د آسمان پر رانه تندي د لمر ځلانده ټکی).

۹. تاسي زما په شاعرۍ کي د پښتو ژبې د ځنیو سوچه وراشو، محاورو او اصطلاحاتو خبره کړې ده.

په دې اړه نو روهیال جانانه! زه بیرته و تا ته ستا د یوې لیکني د کوټیشن په رانقلولو ځان خلاصوم:

"د دغو ټولو ځانګړتیاوو تر څنګ چي زما له پاره ډېر د پام او توجه وړ دئ، هغه د ملا ژبه ده، ملا د خلکو په منځ کي اوسېدلی دئ، د خلکو له منځه د الفاظو انتخاب کوي، په دغه انتخاب کي کېدای سي څو ګټي شاملي وي، یو دا چي د دوی و شاعرۍ ته ئې ځانګړې رنګ او خوند ورکړی دئ، بل دا چي د خپلي ژبې ډېر نایابه اصطلاحات او ژبني ترکیبات ئې خوندي کړي دي، پر دغو ټولو سربېره له سیمه ایزو وراشو، متلو او محاورو څخه هم په پوره پیمانه کار پکي اخستل سوی دئ".

۱۰. ګرانه روهیاله! ستا په پوښتنو کي یوه پوښتنه داسي ده:

"غني خان ته په کوم نظر ګورئ؟ د غني شاعري په پښتني دنیا کي څونه ځای لري او د دغه محبوبیت علتونه ئې څه دي؟"

زړګیه! دا خو پوښتنه نه ده، ما ته خو د یو ضخیم کتاب اوټ لاین برېښي، دا ناپایه سمندر زما په کنډولي کي کله ځایېدای سي، ما ته د حضرت مولوي (رح) په هکله یو مدحیه پارسو بیت را یاد سو:

**من چه گویم وصف آن عالی جناب**
**نیست پیغامبر ولی دارد کتاب**

غني خان خو د غني باچا (ج) د کرم یوه اسماني پیرزو ده دې غریب ښوسه او ښکسه نتلي، ترټلي پښتون قام ته.

پښتو ادب له ده مخکي بل غني نه دئ درلودلی او اغلباً وروستو به ئې هم بیا نه کړي پیدا، د احساس او عقل، تخیل او تفکر، بیان او مضمون، عرفان او فلسفې، دیانت او شخصیت، دا معتدل امتزاج او یکتا موجود له اووم اسمان له ها خوا، و یوه مخلص ملنګ او صادق بنده غره شانتي بني آدم (باچاخان) ته د ده د خدایي خدمتګارۍ په بدله کي خدایي تحفه وه. (زه د باچا خان د سیاسي تفکر او لاري سره پوره پوره موافق نه یم، خو د هغه د عظمت په هکله هیڅ وخت شیطاني وسواس نه دئ رالوېدلی، زما په ذهني انځور کي د باچاخان دنګه بدنه او سپینکۍ وږه ږیره هر

وخت د میسنجر د فلم د هیرو حضرت حمزه او د لیون آف ډیزرت د فلم د هیرو عمرمختار خیالي تداعي ذهن ته راولي، او پلرنۍ شانتي مینه ورسره کوم). د باچاخان سره زما د میني یو بعد دا هم دئ ، چي دی زما د ایډیل انسان غني خان پلار دئ، زه د غني پر هر څه: د هغه پر فکر او ژبه، ایمان او کرکټر مین یم. اوس هم کله کله په خوب کي دوه درې ګنټې خلوت سره لرو او وروسته هم دا امید لرم چي د ده د جنت د بالاخانې په تای خانه کي به څان ته څادر غوړوم او یو خای به ورسره واوسم ان شاء الله.

ما د ادب، فلسفې او عرفان و تصوف په حواله تر بل هر چا غني ډېر ویلی او کتلی دئ هغه پر خدای مین دئ او زه پر ده مین یم، هغه خدای پېژني او زه دی.

هغه د خدای مینه او حسن احساسوي او زه د ده هغې...

غني څو بعدي شاعر دئ، هم فلسفي دئ، انساني دئ، هم رند خراباتي دئ، هم صوفي دئ. د کلام د موضوعاتو په اړه متنوع اړخونه لري. د ده کلام د رنګ او ډنګ د ګډ کیف بلا کیفیت او تر وصف پورته اپیل کوي.

دی دلته د مڅکي پر سر ګرځي خو د خیال څانګي ئې اسمانونه ګزوي او د نظر د عمق رینښه ئې د مځکي تر شکم ها خوا ته غځېږي.

نازک نرم زړه ئې د پسرلني سحر د رنې پرخي په څېر د معیاري هیومانیزم روماني خاصیت لري، او د صیاد نظر اپروچ ئې د ستورو په شبستان کي د ښایست د فرشتو څنې لمسوي.

ما په یوه خوب کي د هغه د هنرمنو ګوتو د شهتار د زیر او بم نغمه واورېده او د نغمې ساز ئې په خوب کي یو بل خوب او بیا په هغه خوب کي یو بل او بل متواتر خوب ته په مینه مینه بوتلم...

څلویښت کاله مخکي چي زه نوی مسلمان سوی وم، د هغه دا شعر مي تر سترګو سو، او دا دئ له تاسو سره ئې شریکوم:

لیونیه مکه څه ده!
ملا کور د یو عاشق دئ
کوټنۍ دي ګڼي ډېري
د همه وُرب خالق دئ

***

لیونیه ایمان څه دئ؟
ملا دا دئ پوخ ګمان
د یو خوب په زړه لیده دي
د وصلونو د جانان

***

لیونیه سجده څه ده؟
ملا څان خاوري کول دي
د مستۍ د ګلوهار
د یار پښو کي اچول دي

دی دي خدای هاخوا پخپله مینه او حسن ونازوي او غافل پښتانه ته دي خدای دا خوا د دې عظیمي هستۍ د قدر شعور ور نصیب کړي.

والسلام
ع. عطایي (ملا)
۶-۳-۲۰۱۶

واحد فقیري / واشنګټن

# د کندهار ۱۹۵۹ بلوا

څه موده مخکې، زما ګران دوست فرید میوندي په فیسبوک کې د کندهار ۱۹۵۹ د بلوا په باب یوه خورا جالبه خاطره د خپلو فیسبوکي یارانو سره شریکه کړه. خدای ستا چې د میوندي صاحب د کندهار د ښار همدې تاریخي خاطرې په ما کې دا احساس راوپاراوه چې د دې بلوا په اړه څه مطالعه وکم. په دې قصې باندي څه خان خبر کړم، او د امکان تر حده پورې د قضیې عوامل او سببونه وپلټم. د تحقیق په بهیر کې دا خیال هم را پیدا سو چې کاشکې خپل معلومات او مفکورې راغونډې کم او له خپلو ملګرو سره ئې شریکې کړم. زما همدا شخصي هڅه او ذهني تلوسه کرار کرار په دې مقالې بدله سوه.

البته د تل په شان په اول سر کې د کندهار د بلوا په باره کې څېړنه څه ګرانه وه. اول لاس مواد او اثار کم ول. څه چې زما سره موجود ول، هغه په هیڅ وجه کافي نه ول. خو بیا هم د خپل شخصي کتابتون تر څنګ مې د واشنګټن په ساحه کې د خپلو اسیوالانو سره د څه وخت له پاره دا موضوع د شپو په بانډارونو کې مطرح کوله. په دې باره کې به مې د هغوی خاطرې راسپړلې، معلومات مې ترې حاصلول، او څه مفکورې مو سره تبادله کولې. مدام به مو په ګډه نوي سوالونه مطرح کول. قضیه به مو له مختلفو زاویو څخه څېړله او هم به مو پر ځینو جنجالي مسایلو باندي بحث کاوه.

د څه وخت، مطالعې او سوچ راوروسته، مسئله بالاخره څه ورښانه سوه. ابهامات څه حل سول او د حادثې مختلف ابعاد څه راڅرګند سول. معنا دا چې د کندهار ۱۹۵۹ بلوا ورو ورو خپل خاص شکل او محتوا غوره کړه. د بلوا په باب په عمومي توګه یو نسبتاً جامع او ژور تصور رامینځته سو او په دې برخه کې ځیني مفکورې خپل طبیعي پوخوالي ته ورسېدلې.

د دې تر څنګ مې د ځینو نورو عزتمنو کندهاري منورینو او دوستانو سره په ټیلفوني مکالمو کې اول لاس معلومات، پخې مشورې او ښکلې خاطرې تر لاسه کړې. د خوشحالۍ ځای دا دئ چې د ۱۹۵۰ او ۱۹۶۰ په کلونو کې کندهار د فکري او سیاسي لحاظه یو ډینامیک او تپاند ښار وو. د سیاسي ګرداوونو نوښتګر

مرکز وو. د تنویر او روښنفکرۍ له لحاظه، کندهار هله په ملي سویه یو استثنایي ولایت وو. اکثره ښاري اوسېدونکي ئې تحصیل کرده وو. زیاتره ئې د کندهاري تجارو او ملي بورژوازي بچیان ول، معنا د دولتي چوکاټ څخه بهر د مستقل عاید خاوندان ول. همدې اقتصادي استقلال او ځان بسیاتوب د کندهار زیاتره منورینو ته د دې فرصت او ازادي ورکړې وه چې د حکومت په اپوزېشن کې وي، او کله نا کله حتی په ټکر کې هم ورسره واقع سي. مطلب مي دا دئ چې په مجموع کې د کندهار منځنۍ طبقه پرمختللې، پراخه او ماهره وه، البته د افغانستان په سطح کې.

که څه هم د سلطنت په دوران کې د کندهار و عصري انکشاف او تعلیم ته کمه خاصه توجه نه وه سوې، او حتی عمدي غفلت لا هم ورسره سوی وو، خو بیا هم کندهاري منورنیو په دواړوو مهمو ملي جریانونو کې – یعني په مشروطیت او ویښ زلمیانو کې – پراخ ګډون لاره، او تل ئې د ملي جریانانو په لیډرشیپ کې مطرح څېرې لرلې.

د ۱۹۵۰ او ۱۹۶۰ په کلونو کې، د کندهار د ښار هوټلونه، تجارتي دفترونه او د بانډار شخصي کوټې د نویو او مترقي افکارو د جر و بحث میدانونه ول. په دې وخت کې، په زرهاوو کندهاري ځوانانو و سیاسي فعالیت ته مخه کړې وه او په ښاري ځوانانو کې مترقي او چپي افکار ورځ په ورځ غښتلي کېدل. په ګرده ښار کې، د وطپالني او مترقي نظریاتو خوږ زوږ خپور وو. مطلب دا چې د مشروطیت او ویښ زلمیانو حرکتونو په کندهار کې اوږده سابقه، ژوري ریښې او پراخ نفوذ لاره. د دغو دوو ملي جریانونو غړي لا هم په دې وخت کې په کندهار کې ژوندي او فعاله ول. لنډه دا چې په دې وخت کې په کندهار کې د روښنفکرانو او تحصیل کرده ګانویو ډول تورم ایجاد سوی وو، او و کابل ته د خطرناکه مغزي فرار نوې څپه لا نه وه را شروع سوې.

**د حادثې څرنګوالی:**

د ۱۹۵۹ د استقلال د جشن په جریان کې، د سلطنتي کورنۍ او ځینو نورو عالي رتبه مامورینو مېرمني او لوڼي په لڅ مخ په عام محضر کې راښکاره سوې. دا وخت د صدراعظم محمد داود خان حکومت وو او داود خان اراده لرله چې په افغانستان کې د ښځو نهضت یو ځل بیا راپیل کړي. د داود خان حکومت په دې وخت کې په ځان ډاډه وو او ګومان ئې کاوه چې محافظه کاران او د ښځو د ازادۍ مخالفان کم خاص عکس العمل نه سي کولای، او معنا بیا د غازي امان الله خان کانه نه تکرارېږي. ځکه په دې وخت کې د افغانستان سلطنتي پوځ د شوروي اتحاد په وسلو سنبال سوی وو، او اردو زیات امکانات لرل. دغه راز د رفع حجاب تر مخه ځینو ښځو په راډیو، نرسینګ، او مکاتبو کې پراخه او په شوق ونډه اخیستې وه، او د خپلو نورو حقه حقوقو د لاسته راوړلو په منظور ئې کمپین هم کاوه. خو ټولو ښځو د کور بهر چادري کوله.

د جشن تر مراسمو را وروسته، د صدراعظم محمد داود خان حکومت په هیواد کې خپل والیان هم دې ته تشویق کړل چې د

مخ لڅي په نهضت کي برخه واخلي، او په خپلو ولایاتو کي عالي رتبه مامورین دې ته تشویق کړي چي خپلو میرمنو ته اجازه ورکړي چي د چادري له توره زندانه راووځي، د وطن په ابادولو کي پوره ونډه واخلي، او د افغان ولس سم نیم نفوس د هیواد په فرهنګي او اقتصادي ودې کي فعال ګډون وکړي.

په کندهار کي، د وخت ګورنر محمد صدیق خان وزیري هم د مرکز په تعقیب په کندهار کي د مخ لڅي و نهضت ته فعالیت پیل کړ چي په نتیجه کي د ۱۹۵۹ د بلوا یو بل عامل سو.

بلخوا، په افغان لیکوالانو کي د ویښ زلمیانو مشهور مبارز غړی مرحوم محمد علم بڅرکي د کندهار ۱۹۵۹ د بلوا یو اصلي علت پر فیوډالانو او دوکاندرانو باندي د مالیاتو یو دم او ناڅاپه جګوالی بولي. «د کندهار بلوا په اصل کي د لوڅ مخی موضوع نه وه، بلکي مالي موضوع وه.» بڅرکي صاحب لیکي چي له یوې خوا د مالیاتو ډېر بدل فیوډالان خوابدي کړي ول، او له بلي خوا د ښځو د لڅ مخی نهضت محافظه کاره ملایان او په جامعه کي نور ارتجاعي عناصر قهرولي ول. همدې ګډ قهر او نارضایت هغوی سره متحد او منظم کړي ول.

په دې مرحله کي، د ښځو د حقوقو د نهضت موضوع د کندهار منورین او محافظه کاران سره مخامخ کړي ول، او دې تقابل څو میاشتي په بر کي ونیولې. د کندهار منورینو د طلوع افغان د جریدې له لاري د ښځو د حقه حقوقو ملاتړ کاوه، او په دې ارتباط ئې مقالې او ترجمې نشرولې. ځینو ویښ زلمیانو د ښځو د حقوقو له پاره د یوې غیر رسمي شبکې په توګه فعالیت کاوه. ځکه د ښار روشنفکرانو د ښځو له لڅ مخی سره «پوره همنوایي درلوده.» په دې مبارزه کي، د کندهار ښځو او منورینو عملاً برخه اخیستې وه. د مثال په توګه، محترمه مېرمن ساجده بڅرکي او متحرمه مېرمن نفیسه سلیمي «په خورا مېړانه خپل طبیعي او بشري حق ته ور ودانګل.» په کندهار کی، همدا دوې محترمي مېرمني د لومړی ځل له پاره لڅ مخ و بهر ته راووتلې، او تاریخي ویاړ ئې وګټی.

په مقابل کي، ارتجاعي ډلي هم ارامي نه وې ناستي، هغوی د ښځو د نهضت په مخالفت کي په ماجتونو او بازارونو کي جلوسونه کول. په پاکستان کي ئې د ښځو د نهضت پر خلاف رساله چاپ کړې وه، او د کندهار په ماجتونو کي ئې خپرول. په ښار کي، محلي ارتجاع د «بې ستری» او «ناموس داری» درواغجن شعارونه ورکول، او د ښځو د نهضت پر خلاف ئې د بې سوادو خلګو احساسات راپارول. تربلوا یوه ورځ مخکي ئې د ښار په متخلفو محلو کي اعلامیې هم ځوړند کړي وې.

خو د دې ټولو فعالیتونو او سیاسي جنجالونو سره سره، د کندهار ګورنر محمد صدیق خان ببده وو. اقدامات ئې زیاتره یو «لیوني» ته پاته کېدل. د ښاغلي بڅرکي په قول، په کندهار کي د ښځو د نهضت مسئله دونه په «بد خوندی» عملي سوه چي «تاریخ هغه هیڅکله نه سي هېرولای.» بڅرکي صاحب په خپل کتاب کي ګورنر صدیق خان

نهایت مغروره، بې پروا، او بې کفایته معرفي کوي. د لیکوال بل نظر دا دئ چي حکومت غوښتل چي په کندهار کي یوه حادثه رامنځته سي، څو حکومت خپل قدرت وښیي او نور ولایات وډاروي. (وېښ خلمیان، مخونه ۱۰۹-۱۰۲).

دغه راز، د افغانستان د چارو مشهور امریکایي لیکوال فقید لویس دوپري په خپل کلاسیک کتاب «افغانستان» کي د کندهار د بلوا یو اساسي عامل د مالیاتو راټولول او اضافه کول بولي. ښاغلي دوپري لیکي چي د کندهار فیوډالانو مالیه نه ورکوله، او هر کال چي به کم ګورنر د هغوی څخه د مالیاتو د راټولولو خبره یاده کړه، د کندهار زمینداران به په خرقه شریفه ننوتل او بست به ئې اعلان کړ. پسله څه مودې به والي هم دا خبره هېره کړه، او کندهاري فیوډالان به بیرته خپلو کورونو ته کامیابه ستانه سول. خو دا ځل صدراعظم محمد داود خان د کندهار ګورنر ته امر کړی وو چي د هغوی سره دي هیڅ ډول نرمښت نه کوي او د کندهار فیوډالان باید دې ته مجبوره سي چي نه یوازي مالیات ورکړي، بلکي اضافه مالیات هم ومني. دغه زار، د کندهار د ښار تجار او دوکاندارن هم باید پر خپلو عایداتو باندي مالیه ورکړي.

کله چي د یوې غونډې په ترځ کي ګورنر محمد صدیق خان وزیري د حکومت دریځ و کندهاري فیوډالانو، تجارو او دوکاندارانو ته اعلان کړ، د کندهار فیوډالان د پخواني عادت سره سم مخ د خرقې شریفي پر لور رهي سول. مګر دا پلا د هغوی مخ عسکرو او پولیسو نیولی وو، او هغوی ته اجازه ور نه کړه سوه چي په خرقه شریفه کي بست اعلان کړي. نو بناء دا خلګ د ښار په بازارونو او کوڅو کي تیت سول، او د مخ لڅي پرضد ئې د کندهار پایلوچان، د ښار ډانګیان او نور بېکاره ځوانان راوپارول چي په نتیجه کي د کندهار ۱۹۵۹ بلوا ایجاد سوه. دوپري لیکي چي بلوا ډېر ژر د جنرال خان محمد خان د مهارت په وجه ختمه سوه، او ښایي درې کسه پکښي مړه او اته تنه ټپیان سوي وي(مخونه - ۵۳۷-۵۳۶).

د یوې ورځنی بلوا په جریان کي، بلواګرانود حکومت پر ځینو تاسیساتو باندي حملې وکړې. د زرغونې انا د نجونو پر مکتب باندي برید وسو. بلواګران د ښځو و یوه حمام ته ننوتل. ځینو د کندهار ښار سینما او فلمونه وسوځل. ځیني دوکانونه چور سول. اعتراض کوونکو د امریکا د ایډ د دفتر یو کارکوونکی ټپي کړ او د هغوی د دفتر نور سامان الات ئې خراب کړل. او دغه راز مظاهرچیانو د کندهار په ښار کي پر هغو کندهاري منورینو باندي حملې وکړې چي د ښځو د نهضت طرفداره ول، او یا ئې خپلې مېرمني دې ته هڅولې چي د مخ لڅې په نهضت کي برخه واخلي. د مثال په توګه، بلواګرانو پر سلیمي صاحب باندي حمله وکړه او د هغه موټر ئې ور خراب کړ.

په هر صورت، د جنرال خان محمد خان قواوو فقط په څو ساعتونو کي بلواګران وځپل، یو شمېر خلګ توقیف سول او ۱۷۲ تنه کابل ته بندي واستول سول. د حکومت او مخالفینو تر منځ تشدد او مرګ ژوبله هم پېښه سوه. دوپري وایي چي ټولټال درې کسه وژل سوي

دي. خو فرهنگ د ۶۰ کسانو د مرگ ذکر کوي چې په اغلب گومان مبالغه ده. داسي ښکاري چې فرهنگ د سياسي ملحوظاتو په خاطر د وژل سويو کسانو تعداد جگ ښيي (افغانستان در پنج قرن اخير، مخونه - ۴۷۱ - ۴۷۰).

### د کندهار بلوا په باب د نورو ليکوالانو مختلف نظرونه:

بايد په سر کي ووايم چې د افغان او خارجي ليکوالانو په منځ کي يوازي محترم بځرکي صاحب او ښاغلي دوپري د کندهار بلوا ته څه توجه کړې ده. بځرکی او دوپري دواړه ليکي چې د دې بلوا يو اساسي سبب د مالياتو ډېرول وو. د هغوی همدا ټکی را وروسته ليکوالانو په مختلفو اشکالو سره تکرار کړی دئ. ځينو خارجي ليکوالانو خو حتی د دوپري بېچاره نوم قدري هم نه دئ اخيستی، او د فقيد دوپري خبري ئې په ناحقه په ځان پوري تړلي دي.

دصدراعظم محمد داود خان د حکومت نظر د هغه قلم مخصوص ښاغلي محمد حسن شرق په خپل کتاب کي بيان کړی دئ. شرق ليکي چې د کندهار بلوا د داود خان د «مخالفانو» يو «مسلحانه قيام» وو، معنا د کابل حکومت د کندهار بلوا ته د يوه وسله وال پاځون په سترگه کتل. او هغه ئې غالباً د پاکستان دسيسه بلله. شرق اضافه کوي چې د کندهار بلوا دوې ورځي دوام درلود، خو د پوليسو او د کندهار د ښاريانو له خوا ختمه سوه (کرباس پوشهای برهنه پا، مخ - ۶۶).

د افغانستان په چارو کي بل ژوندی امريکايي عالم پروفسور برانيت روبين عقيده لري چې په دې وخت کي شهيد داودخان ځان قوي احساسوی. هغه پوهېدی چې قوي اردو لري او کولای سي چې د ملايانو او نورو محافظه کارانو مقابله وکړي. همدا علت وو چې داود خان د ښځو نهضت را مخته کړ، ځو د ملايانو او محافظه کارانو سره ټکر ايجاد سي (د افغانستان توټه کېدل، روبين. مخ - ۷۲).

پوهاند عبدالشکور رشاد ليکي چې د کندهار والي محمد صديق خان د داود خان په تقليد په کندهار کي هم مجلسونه جوړ کړل، او د مامورينو او مخور خلگو ځخه ئې وغوښتل چې د خپلو ښځو سره يو ځای په دې مېلمستياوو کي برخه واخلي. «دې کار په خلکو کي د بلوا هڅه پيل کړه.» په دې بلوا کي ځو تنه ووژل سول، او ۱۷۲ تنه کابل ته بنديان واستول سول. په دې گرفتاريو کي حاجي حبيب الله باميزی، د کرز صالح محمد خان پوپلزی، عبدالقدوس خان بارکزی، ميراحمد جان محمدزی، ملک شکور پوپلزی، عبدالصمد اخوندزاده خروټي او محمد اسحاق علومي نومونه يادوي (د کندهار يادابښتونه، دوهم جلد، مخونه - ۲۴۴ - ۲۴۵).

د (داود خان د کي جي بي په لومو کي) مولف ليکي چې د گورنر محمد صديق خان او د ولايت د ژاندارم قومندان ډگروال سردار محمد اکرم د ځينو مامورينو ښځي د «بريچې او پوليسو په زور مخ لڅي او بې حجابه بازار او کوځو ته راوايستلې، ځو په کندهار کي خلگو د

دې عمل په مقابل کې د مولوي عبدالصمد اخوندزاده په مشرۍ د خپلو ملي او اسلامي شیوناتو د ساتنې په خاطر» په اعتراض لاس پورې کړ (مخونه ۵-۴).

د دغو نظرونو تر کتلو را وروسته به اول د بلوا و تیورۍ ته څه لنډ نظر وسي او بیا به نهایي نتیجه ګیري وسي.

**نتیجه:**

ښاري قیامونه د جهان په ګوټ ګوټ کې پېښ سوي دي او نن سبا حتی په پرمختللو ملکونو کې لکه امریکا او اروپایي هیوادونو کې هم کله نا کله ښاري بلواګانې پېښېږي. ښاري بلواګانې عموماً د خلګو د عمومي شکایت، نارضایت او یا مخالفت په ترځ کې واقع کېږي. په امریکا کې، ښاري پاڅونونه عموماً نژادي کیفیت او بعدونه لري. عموماً د سپین او تور موضوع وي. د پولیس د بد او سخت چلن مشکل وي او یا هم په لویو ښارونو کې د اقلیتونو په منځ کې د فقر او بې کارۍ ستونزه ښاري بلواګانې او اعتراضونه راوزېږوي. په بل عبارت، په پرمختللو ملکونو کې ښاري بلواګانې د اقتصادي نابرابریو، محرومیت او بې عدالتیو په مقابل کې یو جمعي او ګډ اعتراض وي. کله نا کله، په درېیمه نړۍ کې ښاري قیامونه عموماً د اشغالګرو قواوو پر ضد نشنالستي پاڅونونه وي. په هند کې، بلواګانې عموماً مذهبي عوامل لري.

مګر د کندهار بلوا نه نژادي اړخ درلود، نه د ازادۍ له پاره یو قیام وو. او نه ئې هم کم خاص مذهبي عوامل لرل. د کندهار بلوا لکه **ځرنګه چې له نامه څخه ئې ښکاره ده، یوه سپېره توره بلوا وه.** یو نسبتاً منظم ارتجاعي بغاوت وو. استاد حبیبي ئې «یو ارتجاعانه حرکت» بولي چې زه کاملاً ورسره موافق یم (د افغانستان پېښلیک، مخ ۳۰۹).

په بل عبارت، بلواګرانو هیڅ کم عالي هدف نه لاره. اکثره د کندهار د ښار لوچګان، ډانګیان او د چور او تالان له پاره چمتو خلګ ول. معنا دا چې بلواګران نه د مطمئن برق، نه د پاخه سړک، نه د مجهز عصري مکتب او نه هم د اجتماعي عدالت له پاره راپاڅېدلي ول، بلکې په یوې بې هدفه ارتجاعي بلوا کې ئې لاشعوري برخه اخیستې وه.

د کندهار د ۱۹۵۹ بلوا د نورو عواملو او سببونو په برخه کې بایددا ووایم چې لومړی د بلوا په ایجادولو کې د محلي حکومت بې کفایتي له ورایه ښکاري. په یوه کلام کې، د کندهار والي د رفع حجاب مسئله غلطه سمبال کړې وه. ځکه امر یوازې دولتي مامورینو ته راجع وو، خو داسې ښکاري چې د کندهار ګورنر - البته د حکم تر صلاحیت او چوکاټ بهر - عام خلګ، تجار او محلي مشران دې ته هڅولي او یا هم تهدید کړي ول چې خپلې ښځې راوباسي. په نهایت کې همدا بې کفایتي وه چې ګورنر صدیق خان برطرفه او «تحت الحفظ» کابل ته واستول سو، او پر ځای جنرال خان محمد خان مقرره سو (رشاد).

دوهم، د افغانستان اکثره ښاري جامعه د ښځو د نهضت تحول ته چمتو وه، او د کندهار په ښاري پاته په (۱۱۳) مخ کې



ليکوال: استاد محمد معصوم هوتک/کاناډا

# د پښتو ټولني او باړه ګلۍ فيصلو ته کره کتنه

د پښتو ټولني، پښتو اکېډيمۍ او باړه ګلۍ فيصلې ټولي له پښتو ژبې سره د خواخوږۍ او د هغې د پرمختيا او سامبالتيا په نيامت تر سره سوي دي او د پښتو ليکدود د تکاملي جريان يوه مهمه خو د نقد او کره کتنې وړ برخه ده. زه د خپل صلاحيت په حدودو کې د دغو فيصلو د کره کتني کار ته ځان ور اچوم. ښېګڼې او نيمګړتياوې ئې ځېړم او د نه عملي کېدو عامل يا عوامل ئې بيانوم.

د ليکدود معياري کول او توحيدول د ژبې د پر مختګ او علمي کولو يوه اساسي اړتيا ده. داسي اړتيا ده چې تحقق ئې ځانته خپل ټاکلي سياسي، اقتصادي، ټولنيز او کلتوري شرايط او امکانات غواړي. په تشو غوښتنو او حُکمونو ئې تحقق نه ممکن دئ او نه ئې څوک د نړۍ په نورو ژبو کې د دغه شان تحقق مثال راښوولای سي. د واحد ليکدود پر سر د فيصلې له پاره تر ټولو اساسي پوښتنه دا ده چې:

**آيا موږ ليکدود معياري کوو، که ژبه؟**

د دغې پوښتنې له جوابولو پرته هره فيصله او پرېکړه، رود ته د بې ګودره ګډېدلو معنا لري. دې پوښتنې ته يو ځواب په يوه وخت او زمان کې ممکن دئ. په دې معنا چې يا به ليکدود معياري کوو، يا ژبه. داسي جواب زموږ ستونزه نه سي را حلولای چې وواېو: دواړه معياري کوو. داسي جواب مو ولي ستونزه نه سي راحلولای؟ ځکه ئې نه سي راحلولای چې د دې دواړو ساحو پولې او بريدونه توپير لري، د منځته راتګ له پاره ئې شرايط او امکانات يو له بله بېل دي. يو په بل کې تداخل ئې له ستونزې څخه ماشوره جوړوي، لکه جوړه کړې چې ده.

د پښتو ټولني او باړه ګلۍ په فيصلو کې لومړۍ نيمګړتيا دا ده چې د غونډو برخه والو

ئې اصلاً دغه پوښتنه له ځانو څخه یا کړې نه ده. که ئې کړې هم ده، یا ئې سم سر نه دئ په خلاص سوی او یا نو دغه دوې برخي په ناپامۍ کي څني ګډې سوي دي. د دغو فیصلو په وخت کي زموږ له مشرانو څخه ژبه، لیکدود، ادب داسي سره ګډوډ سوي دي، داسي ئې حدود یو په بل کي څني ننوتلي دي چي نه ئې خپل اساسي مقصد څني تر لاسه کړی دئ او نه ئې د فیصلو د عملي کېدو چاره او لاره له کنډو کپره رااېستلې ده. زه به اوږده بیانونه نه کوم او د مثالو په راوړلو سره به خپله د زړه خبره درته وړاندي کړم.

په لومړۍ فیصله کي ۲۱ مادې تصویب سوي دي. په دې یوویشتو مادو کي څلور مادې (۱۳مه، ۱۴مه، ۱۵مه او ۲۱مه) په لیکدود اړه لري نورې ټولي یا په ژبه اړه لري یا ئې په لهجو.

په ۱۳ مه ماده کي وایي چي: "څیني = بعضی" او "څنی=از" باید په همدې شکل ولیکو.

په ۱۴ مه ماده کي وایي چي: "چلوونکی، کوونکی، ښوونکی" باید په دوه واوه ولیکو.

په ۱۵ مه ماده کي وایي چي: د" کښې" کلیمې پای ته به (ی) ور زیاتوو.

په ۲۱ مه ماده کي وایي چي: "زه، زما، زمونږ" به په (ز) لیکو. یعني په (ځ) به ئې نه لیکو.

پورتنۍ څلور مادې د لیکدود مسائل دي او څرنګه چي د لیکدود د توحید له پاره د پوهانو یا صلاحیت لرونکو کسانو (فیصله) هر وخت خپله اغېزه ښندلای سي، نو له همدې اصل سره سم د دې مادو په عملي کولو کي هیڅ رازستونزه نسته او زه ویلای سم چي هر په ژبه پوه لیکوال ئې له همدې فیصلې سره سم لیکي.

نوري مادې د لهجو رنګارنګ وینګ (تلفظ) دئ. د مثال په توګه دا چي وایي: "لځ" ناسم دئ او "لوځ" سم. دا د لیکدود خبره نه ده بلکي د لهجې خبره ده. د یوې لهجې ویونکي خپله مفاهمه د (لځ) لغت په ویلو سره عملي کوي او د بلې لهجې ویونکي ئې د (لوځ) په ویلو سره. که څوک چا ته ووایي چي (لوځ) ئې لیکه، خو د (لځ) په شکل ئې لوله، دا مو په حقیقت کي د واولونو په اداینه کي مشکلات پېښ کړي دي. موږ ګویا په دې حکم سره د (و) ګرافیم ته هم د (زوره کي) او هم د (پېښ) وظیفه پر غاړه اچولې ده.

د (چې، مې، دې) او (چي، مي، دي) مسئله هم دوه اړخه لري. یو اړخ ئې دا دئ چي (چه) به نه لیکو او د (ه) پر ځای به ئې په (ی) لیکو. دا برخه ئې د لیکدود په ساحه کي شامله ده او ټول په ژبه پوه لیکوال ئې مراعاتوي. هیڅ راز ستونزه پکښې نسته. خو دا خبره چي په اوږده یاء (ې) به ئې لیکو که په لنډه یاء (ي)؟ دا ئې د لهجې یا ژبې اړخ دئ او دا په فیصله نه حلېږي. خپل شرایط غواړي.

د (کي) او (کښې)، (کې) - (کښې) خبره هم همدا ډول د لیکدود مسئله نه ده. دا د لهجې خبره ده. د لهجو بدلول په فیصلو سره ممکنه نه ده. د لهجو بدلېدنه ځانته خپل سیاسي، اقتصادي او ثقافتي شرایط غواړي. هري لهجې که دغه سیاسي، اقتصادي او ثقافتي برلاسی وموند، نوري ټولي لهجې به

ئې په وياړ سره ومني او د هغې پالنه به د ځان له پاره غټواله او لويي بولي. په دري ژبه کې د کابل لهجې دغه موقف ځانته ګټلی وو او هرڅا چې د کابلۍ لهجې په شان دري ويله، هغه به ئې د ځان په کمالاتو کې شمېرل.

په (غږ) او (ږغ) کې هم خبره د لهجې يا په مجموع کې د ژبي ده، نه د ليکدود. د ليکدود اړخ ئې دا دئ چې په (غږ) او (غګ) کې کوم يو سم دئ؟ يعني (غږ) په (ږ) سهي دئ که په (ګ).

د (توپک) او (ټوپک) ـ د (بګړۍ) او (پګړۍ) او داسي نورو لغاتو توپيرونه هم ليکدودي پرابلمونه نه دي چې د پوهانو په مجلس دي حل کړه سي، بلکي دا ژبنۍ او لهجوي ستونزي دي چې د هر شکل منل ئې د سياسي، اقتصادي، کلتوري او ټولنيز سيادت او برلاسۍ ملاتړ ته اړتيا لري.

د (شو، شي، ...) او (سو، سي، ...) خبره هم لهجوي ده، ليکدودي نه ده. که هر وخت د (شو، شي) يا (سو، سي) لهجې خپل ثقافتي و سياسي سيادت تر لاسه کړ، نور به بيا د اختلاف ټکی لا هم پاته نه سي. په فيصله ئې اختلاف له منځه وړلای نه سو.

دا او دې ورته نور مثالونه د فيصلې هغه نيمګړتيا ده چې د ليکدود او لهجې (ژبي) له ګډولو څخه رازېږېدلې ده. په نورو څلورو فيصلو کې هم دغه شان ځايونه ډېر دي چې هغه د ليکدود په بحث کې هډو راتللای نه سي او د لهجو يا ژبي په بحث کې بايد ځوک پر وړغېږي. زه ئې د هر مثال تر راوړلو تېرېږم او د خپلي همدې ليکني د اوږدېدلو له اسيته تر نورو ګام اړوم، خو يوازي به پر همزه (ء) او (مد) وړغېږم.

د (همزې) په باب له فيصله والو څخه د (فونيم) او (ګرافيم) مفاهيم ګډوډ سوي دي. په دوهمه فيصله دوهم تصويب کي وايي چې: "د (زه، د ده، ښه، ته) په کلمو کښې د (ه) دپاسه د همزه ليکلو ته ضرورت نشته...". د دريمي فيصلې په پنځم تصويب کي وايي چې: " (ء) دی د زورکی دپاره استعماليږی ـ لکه زړه،...". په باره ګلۍ کي بيا د (زړه، ته، د ده) پر خاتمو باندي د (ء) زياتونه تصويب سوې ده. په عمومي بحثونو کي دا خبره بيا بيا تکرارېږي چې: "همزه په پښتو کي نسته"، خو وضاحت ئې نه دئ ورکول سوی. زما په فکر د همزې فونيم (ږغ) په پښتو کي نسته. په عربي کي چي د همزې په نامه کوم فونيم (صوت) د الفبې جزء منل سوی دئ، هغه يو حلقي (عين ته نزدې) فونيم دئ چي د کلماتو په سر، منځ، پای کي راتلای سي او درې واړه حرکتونه (زور، زېر، پېښ) اخيستلای سي. د کلمې د سر مثال ئې (ابلاغ، اثبات) دئ، د منځ مثال ئې (مسئله، مسئول) دئ، د پای مثال ئې (ضياء، نداء) دئ او د سر او پای مثال ئې (املاء، انشاء) دئ. په قرآن عظيم کي هغه همزه چي د کلمې په سر کي راسي او کسره (زېر) ولري، تر الف لاندي ليکل کيږي، هغه همزه چي د کلمې په سر کي راسي او فتحه (زوَر) ولري، تر الف دپاسه ليکل کېږي. عرب دا فونيم سم ادا کولای سي او (ع) ته نزدې ئې تلفظ کوي. زموږ حافظان او علماء ئې هم د زيات تمرين او تکرار له لاري سم ادا

کولای سي، خو عام خلک ئې د (الف) په شان تلفظ کوي. دغه صوت چي ځانګړتیاوي ئې ما بیان کړې، رشتیا هم په پښتو الفبې کي نسته. مګر د همزې (ء) نخښه (ګرافیم) موږ په پښتو لیکدود کي لرو. د خوشحال خان خټک له ځنځیري لیکدوده رانیولې بیا تر ننه پوري ئې د تورو او کلمو د لا ښه اداینې او تشخیص په نیامت کاروو. په (خورئ چښئ حساب مه منئ) کي ئې د افعالو پر خاتمو باندي ورزیاتوو. د باره ګلۍ د فیصلو له مخي ئې باید د (زړه، ته، د ده، ده) پر (ه) باندي هم دغه نخښه (ء)ولیکو. نو دا حکم چي: "په پښتو کي همزه نسته" باید داسي تشریح سي چي په پښتو ژبه کي د همزې (ء) صوت، ږغ (فونیم) نسته خو نخښه ئې سته.

د باره ګلۍ په فیصله کي څلرم تصویب دا دئ چي: "(مد) په پښتو کي نشته..." دا حکم هم یو څه شنل غواړي. ښاغلی ډاکټر پالوال په دې عقیده دئ چي (مد) د الف اوږد سوی شکل دئ. ښاغلي دوکتور زیار صاحب الفونه پر لنډ او اوږده وېشي.

داوږده الف مثالونه دا دي:

د کلمو په سر کي: (آس)، (آر)، (آړ)

د کلمو په منځ کي: (انار)، (لاس)، (انګار)

د کلمو په پای کي: (ماما)، (کاکا)، (دادا)

دغه اوږده الفونه چي ما ئې مثالونه راوړل، د عادي الفانو په شان ادا ینه نه لري، نو دې اوږده الف ته باید څه نوم ورکو؟ آیا د (اړ = محتاج) او (آړ = مانع، خنډ) د سر ږغونه د اداینې پر وخت یو راز اوږدواله لري؟ دې پوښتنې ته دې د باره ګلۍ فیصلو لاسلیکوونکي جواب ووایي.

بله خبره چي په فیصلو کي ګوته ورته نیول کېدلای سي، هغه د تصویبونو بیا بیا تکرارول دي. د مثال په توګه د (ڼ) او (نړ) پر لیکنه باندي څو واره تصویبونه سوي دي. په باره ګلۍ کي ئې بیا تکرار کړی دئ. د (ځیني) او (ځني) فیصله څو پلا سره تاو راتاو سوې ده. د (ګ) او (ګ) لیکنه څو ځلي مکرر تصویب سوې ده. د عربي تورو پر کاروَنه بیا بیا خبري سوي دي. د دې تکرار اړتیا څه ده؟ یا څه وه؟ زما په فکر فیصله کوونکي نویو پرابلمونو ته د حل لاره نه سي موندلای او فیصله په مکرراتو سره پای ته رسوي. دا چي ولي د حل لاره نه سي موندلای؟ جواب ئې څرګند دئ او هغه دا چي د لهجې بدلون د لیکدود په بدلون کي لټوي!!!

**د فیصلو په غونډو کي برخه وال زیاتره داسي استدلال کوي چي که پښتو واحد لیکدود و نه لري، نو به خارجیانو ته خپله ژبه څرنګه ورزده کوو؟**

دوی داسي انګېرله چي که موږ (سو) او (شو) دواړه ومنو، نو به ئې خارجیان کوم شکل زده کوي؟ دا پوښتنې اوس هم کله کله په سیده یا ایرب شکل مطرح کېږي. دې پوښتنې ته زما جواب دا دئ چي که کوم خارجي زما ژبه زده کوي، نو زما د ژبې اصول به هم زده کوي. موږ د خپلې ژبې اصول خارجیانو ته د اسانۍ له پاره تر پښو لاندي کولای نه سو. آیا هم موږ کله له انګرېزي ژبو خارجیانو څخه دا پوښتنه او غوښتنه کړې ده چي دوی دې په انګرېزي کي زموږ د اسانۍ په خاطر د (ش) او (چ) اواز له پاره یو ګرافیم

وتاکي؟ دوی ولي په یوه ځای کي (sh) د (ش) له پاره کاروي، بل ځای (su) د (ش) له پاره راوړي او بل ځای په (tio) سره د (ش) څرګندونه کوي. موږ دوی ته ویلي دي چي ولي په یوه ځای کي (ch) د (چ) له پاره او په بل ځای (tu) د (چ) له پاره راوړي. دا پوښتنه او غوښتنه ځکه نه کوو، چي دا خو د دوی د ژبي قوانین دي، موږ ته که سخت دي که اسانه، باید همداسي ئې د دوی له ژبني قانون سره سم زده کاندو. خارجیان مجبور دي په دې خبره ځان پوه کړي چي د پښتنو یوه لویه کتله (چې، مې، کې) لیکي او همداسي ئې وایي (تلفظ کوي یې) او بله لویه کتله ئې بیا (چي، مي، کي) لیکي او همداسي ئې وایي. که څوک دا مسئله د لیکدود په برخه کي شامله ګڼي، نو بیا دا د پښتو لیکدود دوه بېلابېل سیستمونه دي. خارجیانو ته دا خبره تر موږ ښه معلومه ده چي دا راز متنوع سیستمونه په نورو ژبو کي هم سته. جاپاني ژبه د لیکدود درې سیستمونه لري او څلرم ئې هم د منځ ته راتلو په حال کي دئ. (وګ: تږی - حبیب الله: نوې ژب پوهنه او ژبنی مسایل: ۴۰مخ - پښتوټولنه، کابل - ۱۳۴۵ش) او څوک چي غواړي جاپاني ژبه زده کړي، دا درې سره سیستمونه به زده کوي.

**آیا د فیصلو تصویبونه په عمل کي تطبیق سوي دي؟**

زما د خپلي مشاهدې له مخي د فیصلو هغه برخي چي په رښتیا سره هم په لیکدود اړه لري، هغه په سلو کي تر نوي لا هم زیاتي عملي سوي دي او د بشپړ عامېدلو پر لور رهي دي. له ځینو ناخبرو کسانو او نوو بهر مېشتو زلمیوپرته نور نو (پښتو) څوک (پختو) نه لیکي، (ږیره) څوک (ګیره) نه کاړي، د یاء ګانو پر ګرافیمونو باندي اختلاف نسته، (ڼ) څوک (نړ) نه کاړي او نور. خو هغه مواد چي یو کول ئې په فیصلو سره ممکن نه دي، یعني د لیکدود په اورشو کي شامل مواد نه دي، بلکي په لهجه یا ژبه اړه لري - د هغو په باب تصویبونه د کاغذ پر مخ پاته دي. د مثال په توګه د اوږدې یاء او لنډي یاء د کارولو مسئله چي په حقیقت کي لیکدودي مسئله هیڅکله هم نه ده او په لهجه (ژبه) اړه لري، ان د پښتو ټولني پخپلو نشراتو کي لا هم عملي سوې نه ول. په ښکاره ئې پلمه دا وه چي په مطبعه کي د دغو یاګانو له پاره توري نسته، یا د حروف چینانو د نه پوهېدلو بهانه به راوړل کېده. مګر حقیقت دا دئ چي دغه راز وحدت د فیصلو تر صلاحیت وتلې چاره ده. همدغه سبب دئ چي موږ د ځینو مشرانو استادانو په لیکنو کي تر دا پرونه پوري د (چی) او (چه) دواړه شکلونه وینو. (وګ: د میرزا خان انصاري دېوان - سریزه - دریم او څلورم مخونه - د ۱۳۵۴ چاپ، کابل). د همدغي سریزي په دریم مخ کې (کښي) او (کی) دواړه شکله راوړي دي. موږ ته دا خبره معلومه ده چي د ژبپوهني لوی استاد اروانباد حبیب الله تږي د (چې) او (چي) لیکنه په لیکدودي بحث کي نه شاملوله او دواړو ته ئې د استعمال لار پرانیستې پرې ایښې وه (وګ: نوې ژبپوهنه او ژبني مسایل - بېلابېل مخونه).

د هغو کتابو په چاپ کي خو به څوک د

مطبعې تخنیکي ستونزه ومني چې په دولتي مطبعه کې په حروفي چاپ چاپېدل، خو په هغو کتابو کې چې د پوهنتون له خوا په لاس کښل سوي او چاپ سوي دي، هورې به د یاء ګانو نه مراعات ته په کمه (کومه) سترګه وګورو؟. (وګ: د زیارصاحب ویي پوهنه ـ ۱ مخ ـ د ادبیاتو پوهنځي چاپ ـ ۱۳۶۰ ش) حتی د دغه چاپ په اوله لیکه کې (چې) لیکلی او په ځلرمه او پنځمه کرښه کې بیا (چی) کښلی دئ. دا چې اروابناد دوست شینواري (چه) کیښې، علامه حبیبي او علامه رشاد (سو، سي) کیښې، نورو بیا د (کې) پر ځای (کښې) کیښې، دا ټول پر دې خبره دلالت کوي چې فیصلې په عمل کې نه تطبیقېدلې او هر چا خپله لار ه تعقیبوله. ښاغلي زیار صاحب یو ځای کښلي دي چې دوی یو پروسیجر د مرحوم حبیبي او مرحوم خادم او ډاکټر دولت محمد لودین په ګډون لاسلیک کړ خو خادم صاحب "بیا مخالف شو او ویې ویل چې زه د حبیبي صاحب او د ده د پیروانو لار په رسمیت نه پېژنم او بغاوت یې وکړ ...." (وګ: ښکلا مجله ـ ۴ کال، ۳ ګڼه ـ ۵ مخ). پوښتنه دا ده چې دا فیصلې نو ولې تطبیق سوي نه دي؟ جواب دا دئ چې مونږ د لیکدود یو کولو په نامه لهجې سره یو کوو. یا مو د یوې ځانګړې لهجې د سیادت له پاره لېځې رانغښتي دي. یا نو خبره دا ده چې د لیکدود د معیاري کولو پر وخت ژبه معیاري کوو. دا څو بېلا بېل کارونه یو په بل کې راځخه ګډ سوي دي. د لیکدود معیاري کول په فیصلو او توصیو سره کېدلای سي، مګر د ژبې معیاري کول یا معیاري کېدو ته د یوې لهجې رسول خپل ځان ته سیاسي، اقتصادي، اجتماعي او ثقافتي شرایط غواړي چې تر اوسه پورې لا پښتو ته په عمومي ډول او لهجو ته ئې بیا په خاص ډول دغه راز شرایط مساعد نه دي.

د خواشینۍ بله خبره لا دا ده چې د پښتو ټولني فیصلې پخپله د فیصله کوونکو له خوا تر پښو لاندي کېدلې. د پښتو ټولني په هماغه لومړۍ فیصله کې دوولسمه تصویب سوې ماده د (ړغ) او (غړ) په باب ده او تاسي په تېرو بر خو کي ولوستله چې دواړه شکلونه ئې منلي دي. خو په عمل کي بیا د پښتو ټولني د سپارښتني او فشار له اسیته په راډیو افغانستان کي هغو نطاقانو ته د کار اجازه نه ورکول کېده چې (ړغ) به ئې کاراوه. په مطبوعاتو او نشراتو کي د هغه لیکوال مقاله نه خپرېدله چې (ړغ) به ئې کار کړی وو، که به خپره هم سوه، (ړغ) به ئې په (غړ) ور اړولی وو. د دې تبعیضي چلند لازمي نتیجه همدا وه چې د (ړغ) ویونکي لیکوال د فیصلې نورو تصویبو ته هم بې اعتناء سي. دغه بې اعتنایي سرغړونه نه وه، بلکي د تبعیضي چلند پر ضد اعتراض او عکس العمل وو. له بده مرغه نن هم هماغي زړې ستراتیژۍ ته ګویا د نوي ژبپوهني اکاډمیک پرتوګ وراغوستل کېږي، خو سترګور او له مسایلو سره اشنا لیکونکي او لوستونکي ښه پوهېږي چې خبره څه ده؟

اوس به یوه بله پوښتنه په منځ کي کښېږدو چې: **آیا د کلماتو د یوه شکل غوره بلل یا د چا خبره معیاري ګڼل به دا معنا ولري چې دا نور شکلونه ئې غلط دي؟**

دا پوښتنه به په يو څو مثالو سره لږ څه واضح کړو. که په (مړی، ډوډی، ټيکله) کي يو کره وبولو، نوآيا دا نور به ئې غلط وي؟ که په (کښې)او (کې) کلمو کي يو شکل کره وبلل سو، د مثال په توګه (کې) غوره سو نو (کښې) ته به غلط وايو؟ که په (شو، شي-سو، سي) کي يو شکل "مرجح" وبلل سو، دا بل شکل به ئې غلط ګڼو؟

دې پوښتنو ته زه د ځان له خوا جواب ځکه نه ورکوم چي "ټيکه داران" هرو مرو راته د تحصيلي سند نه لرلو بنديز مخې ته ږدي. نو به ئې جواب د داسي چا له خولې ورکړم چي په ژبپوهنه کي ئې عالي تحصيلات د امريکا په متحده ايالتو کي سر ته رسولي ول او په ژبپوهنه کي ئې زما د نسل اوسني همزولي شاګردان دي، ارواښاد پوهاند حبيب الله تږی درښيم. ارواښاد تږي دې پوښتنو ته پخپل کتاب (نوې ژبپوهنه او ژبني مسايل) کي داسي جواب ورکړی دئ. وايي چي:

(ليکدود مي کټ مټ رانقل کړی دئ. هوتک) "د هر ملت دپاره د يوې معياری لهجې لرل - په هره بڼه چه وی - يو ضروری او مفيد کار دی. اما دا بيا هم د دې معنا نه لری چه غير معياری لهجې غلطې دی. بلکه مطلب دا دی چه هغه عامې او معياری نه دی. که نه وی د خپلو ويونکو دپاره کاملا درستی ښې او صحيح لهجې دی. **د معياری لهجې د رامنځ ته کولو مسأله فقط د ژبې د تعميم خبره ده نه د صحت او غلط خبره.** (پر کلماتو تاکيد زما دئ. هوتک) **د غير معياری لهجې د فهم ساحه نسبت و معياری لهجې ته معمولاً تنګه وی، اما د ژبې د سستم نه انحراف نه لری چه غلط وبلل شی. غلط کلام هغه دی چه د ژبنی سستم سره بيخی موافقت و نه لری.**

**مثلاً "ما څې وويلې = ما چه وويل" د موجوده پښتو په اساس يوه غير معياری لهجه ده، مګر غلطه نه ده. ځکه چه خپله د دغې لهجې ويونکی پوره پرې پوهيږی او د ژبې د عمومی سستم سره مخالفت نه لری. اما "دوه کتاب" قطعاً پښتو نه ده. يا په اصطلاح غلطه پښتو ده. ځکه دا دننه په ژبنی سستم کښې کوم لهجوی فرق نه دی. بلکه د ژبې له ټول سستم نه يو مطلق انحراف دی."** (وګ: نوې ژب پوهنه او ژبنی مسايل-۱۲۷-۱۲۸ مخونه).

**زه څه راز ليکدود پالم؟ او څه غواړم:**

- زه د پخوانيو فيصلو هغه برخي چي په ليکدود اړه لري، له يو دوه ځايه پرته نوري ټولي په ليکنه کي تطبيقوم. هغه چي په ليکدود اړه نه لري او د لهجې يا ژبې په حدودو کي راځي، د هغو عملي کول د ځان مکلفيت نه بولم. ځکه ئې نه بولم چي زما په نزد پښتو ژبه د خپل طبيعي انکشاف هغه پړاو ته لا رسېدلې نه ده چي يا دي کومه لهجه د معياريت متکامل پړاو ته ننوتلې وي، يا دي د ټولو لهجو له امتزاجه يوه دريمه له اخلاصه ډکه پښتون شموله لار ورته تاکل سوې وي.
- زه په ليکنه کي د (شو، شي، شم، ...) پر ځای (سو، سي، سم، ...) ليکم. که څوک دا راته ثابته کړي چي په شين سره د دغو افعالو ليکنه د پښتو ژبي د ودانۍ "فيل پايه" ده، په هغه وخت کي بيا د همدا ننی ورځي په جرئت او مېړانه حاضر يم چي خپل ټول سينونه د سيند څپو ته ورکړم.

– زه د (دی = he) او (دئ = is) توپیر کوم. د دغه التباس د لیري کولو له پاره که بل څوک تر دې ښه وړاندیز لري، منلو ته ئې تیار یم.

– زه د ښځینه جمع له پاره هغه قاعده پالم چې زموږ ټول کلاسیک ادب پاللې ده او اوس ئې هم له غزني څخه تر هراته، د هزاره جات له پولو څخه د بلوچستان تر دوکۍ پوري پراته پښتانه په ویلو کې پالي. یعني د (پښتنه، زرغونه، نغمه) جمع (پښتنې، زرغونې، نغمې) لیکم او د (ښځه، ونه، پرخه) جمع (ښځي، وني، پرخي) لیکم.

– زه د هري لهجې خوندور لغات په مینه کاروم او د لغتو د وژلو سخت مخالف یم.

– زه د ژبې د سوچه کولو سر سخت مخالف یم. ما په ژبه کې د ترجمې کار کړی دئ او راته معلومه ده چې د سوچه ژبې پالونکی ژباړن د ترجمې پر وخت له څومره مشکلاتو سره مخامخ کېږي؟ زما په نظر سوچه ژبه د بدوي او ځنګلي انسانانو ژبه وي، د متمدنو انسانانو ژبې یو له بله سره اخښلي و بخښلي وي. له نن څخه ۳۵۰ کاله مخکې چې عبدالقادرخان خټک د یوسف و زلیخا کتاب ژباړه، هغه ته د سوچه پښتو ستونزي ور معلومې سوي وې، ځکه ئې ویلي دي:

د پښتو ژبـــــه ده سخته
چې ادائې کړې یک لخته
په یـــوازې، بې لذت شي
بل ملال تـرې طبیعت شي
په فـــارسي چې شي آمېزه
هاله شي طـــرب انګېزه
عربي چې ورســـــره شي
عزت بیا مومي لا ښه شي
ځکه دا شـــــعر آمیز شو
ګوهر ریز او شـــکرریز شو
(یوسف زلیخا ـ ۳۶۹ مخ د ۱۳۹۱ چاپ، کابل)

– زه د پښتو ژبې د معیاري کولو سرسخت پلوی یم خو په بې وخته اذان لمونځ نه کوم.

**نتیجه ـ څه باید وکړو؟**

زما په نظر، پرېږدئ چې پښتو لیکني زیاتي او نشرات مو پراخ سي. په (سو، شو) ـ (چې، چي) پسې مه ګرځئ. که څوک (چې، مې کې)، لیکي ـ که (چي، مي، کي) و دې لیکي. پر دغو مسایلو باندي د پښتانه په منټالیټۍ (mentality) سره بحث کول، بې له دې چې فاصلې سره لیري کاندي، بله نتیجه نه ښندي. له لهجو سره دښمنۍ ګټه نه ده رارسولې، بلکي لا ئې سره بېل کړي یو. لهجې یوه لا هم بشپړه نه ده.د هري لهجې ګرامري او اصولي نیمګړتیاوي به ورسموو. زه د خپلي لوېدیځي لهجې (زرغونه راغلل) هیڅکله هم نه لیکم. که کله کله په ناپامي کي راڅخه ولیکل سي، ژر ئې د اصلاح لټه کوم. د نورو لهجو له ویونکو څخه هم هیله لرم چې خپلو نیمګړتیاوو ته متوجه سي. د خپل نظر مخالفینو ته په سپکو سپورو څه نه جوړېږي. نن ورځ د انټرنیټ له برکته یا له شامته د انحصاریت بندیزونه نور مات سوي دي. که موږ یو چا ته د هغه د نظر په خاطر سپکي سپوري ووایو، هغه به ئې یو ځل، دوه ځله، درې ځله وزغمي. آخر ته بې حوصلې کیږي او په متقابل عمل لاس پوري کوي. له دې به نو څه جوړه سي؟ پای



ليکوال : ډاکټر نثار احمد صمد/کاناډا

# ۳۲ کاله سياسي بند

بسم الله الرحمن الرحیم - درنو لوستونکو، تاریخ سابقه د آینده سره تړي. نو لوستنه ئې ډیره ضروري ده.

هو، موږ پوهېږو چې دلته پاچا خان او هلته نیلسن ماندیلا هر یوه اوویشت اوویشت کاله جېل کاټ کړی دئ چې دا ستره قرباني ده. خو زه چې کوم اتل او مبارز درمعرفي کوم هغه د خپل خواږه ژوند پوره ۳۲ کلونه (یا ۱۱۶۸۰ ورځي) د جېل په تورتم کي تېري کړي دي تر څو نورو ته روڼا وبخښي. دغه ملي مبارز د خپل ژوند زیاته برخه د ملت د سوکالۍ، خوشحالۍ او هوسایۍ له پاره قربان کړې ده. هو، دا ملي قهرمان کاکا سید احمد لودین دئ چې تاسو ته ئې درپېژنم!

کاکا سید احمد خان لودین د فیض محمد خان لودین ملا نصوح (د سردار کهندل خان وزیر) زوی وو. د ده مشران د کندهار د مشهوري تجارتي او سیاسي کورنۍ څخه دي. دی د ۱۲۹۰ په حدودو کي د کندهار په برُ بازار کي زوکېدلی دئ.

د دوی کورنۍ په کندهار کي په ثروت او تجارت شهرت درلود. د کندهار د لودیانو کوڅه (بر دراني) د دوی په نوم وه. کاکا خپلي لومړنۍ زده کړي د هغه مهال د کندهار پر علماوو وکړې. بیا وروسته د کابل په بالاحصار کي د امیر شیرعلي خان په لومړني عسکري

مکتب کي شامل سو او لږ وخت د سید جمال الدین افغاني شاګرد هم وو. دی د مکتب په ټولو کلونو کي اول نمره وو.

څنګه چي له فراغت څخه وروسته د سِن له مخې تر خپلو ټولو همصنفیانو کشر وو، نو د ده لیاقت ته په نه پاملرنه ئې پر یوه کښته نظامي رتبه مقرر کړ. دی له دې کاره ناراضه سو، نو هغه وو چي دنده ئې پرېښووله او کندهار ته ولاړی.

په کندهار کي ئې د انګریزانو د جنګ صحنې پخپله ولیدلې. د شېرعلی خان د دورې تر ختمېدو وروسته بیرته کابل ته ولاړی. د امیر عبدالرحمن خان د پاچهۍ په لومړیو کي بندي سو څو چي د هغه د سلطنت په وروستیو کي آزاد سو. بیا د هغه د زوی امیر حبیب الله خان د پاچهۍ په ترڅ کي د حبیبیې د مکتب منتظم سو او همدلته د مشروطه غوښتونکو د غورځنګ یو فعال غړی او د یو ګروپ مشر سو (جنبش مشروطه خواهي در افغانستان: ۲۶۶مخ).

د پوهاند هاشمي له پورته بیان څخه ښکاري چي کاکا د امیر عبدالرحمن خان د یوویشت کلن سلطنت ټوله موده په جېل کي تېره کړې ده. وروسته د امیر حبیب الله خان په وخت کي یوولس کاله نور پسي بندي سوی دئ چي جمعاً دوه دېرش کاله کېږي. استغفرالله، دا څومره عظیمه قرباني ده!

کاکا د خپل یوولس کلن بند پر مهال د سواد آموزۍ یو نوی طرز ترتیب او تطبیق کړ. په محبس کي ئې بندیانو ته د خپلي همدې طریقې له مخې سواد ور زده کاوه او ډېر کسان ئې باسواده کړل چي د کاکا طرز وبلل سو. د کاکا دغه طرز وروسته اردو ژبې ته هم د «قاعدهٔ نادره» په نوم ترجمه، تطبیق او رواج سو (جنبش مشروطیت در افغانستان: ۳۵مخ).

په هر صورت، د افغانستان د خلکو د مبارزو په تاریخ، خصوصاً د امیر حبیب الله خان په دوره (۱۹۰۱ - ۱۹۱۹) کي د چوب فروشۍ د مدرسې او حبیبیه دارالعلوم د روښانفکرانو او پوهانو له خوا د امیر دربار ته وړاندیز وسو چي د افغاني پوهانو یو انجمن رامنځته سي، تر څو یوه پنځلس ورځنۍ جریده د «سراج الاخبار» په نوم په مرکز کي خپره کړي (از جنبش مشروطه تا دولت مشروطه: ۱۱۰مخ).

نو هغه وو چي په پنجشنبه د ۱۳۲۳ قمري کال د ذیقعدې پر پنځلسمه (۱۱ جنوري، ۱۹۰۶ میلادي) د سراج الاخبار انجمن تأسیس سو چي د مولوي عبدالرؤف خان قندهاري په مدیریت د «سراج الاخبار افغانستان» لومړنۍ شماره خپره سوه. فقط یوه ګڼه ئې نشر سوه او همدا د مشروطه نهضت اساس دئ (د افغانستان تاریخي پېښلیک: ۲۲۱مخ).

کاکا سید احمد لودین د مشروطه غوښتونکي نهضت له لومړنیو کسانو څخه دئ. د دې غورځنګ مؤسس مولوي محمد سرور واصف به د میر سید قاسم او نورو سره د دې نهضت د جوړولو پر ضرورت مجلسونه کول او دا غونډې به اکثراً د شپې رواني وې، څو چي د ۱۹۰۶ کال په ډسمبر کي د میر صاحب (یعني میر سید قاسم) په سراچه کي د

مشروطه غوښتونکي نهضت بنسټ کېښښوول سو. د هغې شپې په دغه تاریخي غونډه کي میر صاحب، مولوي محمد سرور واصف، کاکا سید احمد لودین، تاج محمد خان بلوڅ پغماني او یو بل نفر وو چي نوم ئې متأسفانه هېر سوی دئ (ظهور مشروطیت و قربانیان استبداد: ۳۷ـ۳۸ مخونه).

لوی استاد علامه حبیبي وایي چي ما د خپل اکا د زوی او استاد، شهید مولوي عبدالواسع څخه چي د لومړني مشروطیت له بندیانو څخه وو اورېدلي ول چي د دې جمعیت لومړني کندهاریان یعني مولوي واصف او د هغه د کورنۍ غړي د کاکا سید احمد خان سره، په شاهي مدرسه (جامع چوب فروشي) کي چي د هغې مدرسې په مدرس مولوي عبدالرؤف خان پوري ئې اړه لرله، په یو اطاق کي اوسېدل او د لومړنیو مشروطه غوښتونکو د تحریک طرح ئې همالته جوړه کړه (جنبش مشروطیت در افغانستان: ۶۰ مخ).

په هر صورت، د مشروطه غوښتونکو تحریک په کابل کي تر ۱۹۰۹ مخکي د یو پټ جمعیت په توګه رامنځته سو چي د «سرِ ملی»، جمعیت یا «جان نثاران اسلام» یا «اخوان افغان» په نوم یادېدل چي لس کسیزه ګروپونه ول څو چي ټول مخکښان او فعالین ئې په ۱۹۰۹ کي ونیول سول (افغانستان در پنج قرن اخیر: ۴۵۴ مخ).

کله چي مشروطه غوښتونکي په ۱۹۰۹ کي د امیر حبیب الله خان د خښم او ځپني ښکار سول نو کاکا سید احمد خان هم بندي سو چي د هغه د پاچهۍ تر پایه بندي وو. هغه داسي چي د دې تحریک دوو تنو غړو (استاد محمد عظیم خان او ملا منهاج الدین جلال آبادي) خیانت وکړ او د ټولو مشروطه غوښتونکو لیست ئې په جلال آباد کي امیر حبیب الله خان ته ورکړ هغه هم (د ۱۲۸۵ لمریز کال د حوت په میاشت کي) خپل احکام صادر کړل. اووه کسان ئې په اعدام او نور ئې په اوږده بند محکوم کړل. هغوی چي اعدام (توپ ته وتړل) سول دا دي: د تحریک مشر مولوي محمد سرور واصف، د هغه ورور سعدالله خان الکوزی، د هغه د پلار د اکا زوی عبدالقیوم خان الکوزی، لعل محمد خان کابلي، محمد عثمان خان پروانی، جوهر شاه خان غوربندی او محمد ایوب خان پوپلزی. هغوی چي بندیان سول ۳۷ کسان ول (از جنبش مشروطه تا دولت مشروطه: ۱۵۷ ـ ۱۵۸ ـ ۱۵۹ مخونه ؛ افغانستان در مسیر تاریخ ۷۱۷ او ۷۱۸ مخونه). په دغو کي عبدالرحمن خان د سرور خان واصف ورور [د دغه لیکوال د پلار نیکه] په جېل کي وفات سو (هماغه ۷۱۹ مخ).

دا بندیان پر دوو ډلو ووېشل سول. یوه ډله په زولانه او اوسپنیزه طوق او ځنځیر سره تړلي د سلطنتي ارګ په جېل کي او بله ډله په زولنو کي د شیرپور په جېل کي بندیان سول. دواړي ډلي کوټه قلفه وې. د بند په لومړیو څو کالو کي د دغو بندیانو اطاق د ورځي صرف یو ځل د لسو بجو په شاوخوا کي خلاصېدی او مصلی، سقاو او نانوای به دننه ورتی. دولت د هغوی فی نفر ته د ورځي دوې وچې یو پاویزه ډوډۍ ورکولې او هیڅا اجازه نه درلوده چي د هغوی سره وګوری لاکن څو کاله وروسته یو

څه آساني راغله (افغانستان در مسیر تاریخ: ۷۲۰ مخ؛ جنبش مشروطه خواهی در افغانستان: ۲۹۸ مخ). هو، کاکا سید احمد خان هم یو له دغو قربانیانو څخه وو چي دارګ په جېل کي ئې یوولس کاله دا ظلمونه وزغمل.

اوس به په زندان کي د کاکا سید احمد خان پر یوولس کلن غمجن ژوند او هلته د ده پر فعالیتونو یو څه رڼا واچوو. مولوي محمد حسین هندوستاني چي د ده سره یو ځای تر آخره بندي وو، داسي لیکي:

«سید احمد خان د یو فوق العاده فکر او ثبات څښتن وو. هغه د امیر شېرعلي خان په حربیه مکتب کي تعلیم کړی وو. هغه له یوې معززي کورنۍ څخه وو چي په خپل کور کي ئې د عربي، فارسي او ریاضي معقول علوم زده کړي ول. د امیر عبدالرحمن خان په وخت کي هم او بیا په «جمعیت جان نثاران اسلام» کي د شمولیت له امله هم زموږ سره بندي سو چي هلته د تعلیم او سواد د یوې نوي طریقې د ایجادولو موقع ورته برابره سوه.

د نورو بندیانو اولادونه چي به د زړه سوي له امله په ارګ کي موږ ته راتلل نو پر هغوی ئې دغه طریقه تطبیقوله. د ځینو سپاهیانو اولادونو هم تعلیم ورڅخه حاصلاوه او پخپله به سپاهیان او افسران هم کله کله ورته راتلل. تر دې چي د سپهه سالار محمد نادرخان له خوا په پوځ کي اعلان وسو چي په آینده کي بېسواده افسران ترفیع نه سي کولای. یوې ډلي پوځیانو به صرف یوه میاشت پر موږ پیره داري کوله. دلګی مشرانو او ضابطانو به موقع غنیمت ګڼله او د دې قاعدې څخه به ګټمن کېدل او زده کړه به ئې کول، څو چي په یوه میاشت کي به پوره باسواده سول.

ما ته هم دا قاعده ښه ترا معلومه سوه او کله چي به مي نوي تعلیمي کتابونه او اخبارونه لوستل او ګټور مطالب او مواد به په مخه راتلل نو هغه به مي سید احمد خان ته ویل. خو هغه ته به زیاتره دغه مطالب له مخکي څخه لا ورمعلومېدل او لازم مواد به ئې تر تجربې وروسته خپل کتاب ته ورشاملول. دغه قاعده ما ته دومره ګټوره او عجیبه ثابته سوه چي د ثواب په خاطر مي یو زر جلده په پټه په هندوستان کي چاپ کړل او د زده کړي له پاره مي رامیدان ته کړل چي په کابل کي نورو خلکو هم خپلو اولادو ته له هغه څخه سواد او تعلیم ورزده کاوه.

سید احمد خان یو ځل په بندیخانه کي داسي ناروغ سو چي ډاکټر د هغه د رغېدو څخه ناامیدي وښودله. خو ما ورته وویل چي الله تعالی داسي فرمایي: «امّا ما یَنفعُ الناسَ فیمکث فی الارض» (هغه څه چي انسانانو ته ګټه رسوي په مځکه کي پاتېدونکي دي) [الرعد: ۱۷]. نو تر څو چي ته خپله دغه طریقه په ټول افغانستان کي جاري او طاري نه کړې، ژوندی به یې» (انقلاب افغانستان: ۹۴ ـ ۹۵ مخونه).

کاکا یو کتاب د حساب د علم په باره کي تألیف کړ چي عنوان ئې (خلاصة الحساب) وو لاکن چاپ نه سو. د سواد آموزۍ په حصه کي ئې په خپل ابتکار یو داسي طرز ایجاد کړ چي په معارف کي د «کاکا طرز» وبلل سو. دا لومړنی تحول دی چي د سواد د زده کړي په

برخه کي رامنځته کېږي. پخوا «قاعدهٔ بغدادي» وه چي کوچنیان ئې ژر نه سوای باسواده کولای.

هو، کاکا سید احمد خان دومره زړه ور، صریح اللهجه او سپیني خبري کوونکی وو چي ساری ئې نه درلود. هغه وخت د یو څو کسانو څخه پرته نور خلک د دیموکراسۍ او مشروطیت غوندي کلمو سره بلد او روږد نه ول. همدغه یوې ډلي دردمنو منورینو د همدې مفکورې د پر مخ بېولو په خاطر د مشروطه غوښتني تحریک راپیل کړ. څنګه چي د دې جمعیت اوځار اشخاص د حبیبیه مکتب معلمان ول او د دې مکتب مدیر ډاکټر عبدالغنی وو، نو هر چا به دا ګومان کاوه چي دغه تفکر د ډاکټر غني د فکر محصول دئ. له همدې امله ئې په جېل کي د مشروطه نهضت بندیان د ډاکټر غني د فقرې بندیان بلل او کله چي به ئې مشروطه غوښتونکي بندیان د تحقیقاتو له پاره ورغوښتل، نو ږغ به ئې کاوه چي د ډاکټر غني د فقرې بندیان حاضر کړئ!

یوه ورځ د زندان ساتونکي د اطاق دروازه خلاصه کړه او ږغ ئې وکړ چي د ډاکټر غني د فقرې محبوسین دي راووزي. څو کسان چي په هغه اطاق کي ول ور ووتل. سید احمد خان قندهاری مشهور په کاکا هم په همدې اطاق کي وو، د هغه څخه ئې وپوښتل چي ستا پښه خو هم د ډاکټر غني په فقره کي بنده ده. هغه په داسي حال کي چي ډاکټر غني پخپله هم په همدې اطاق کي موجود وو، په پښتو سخت ښکنځل وکړل چي زه د ډاکټر غني ښځه داسي داسي کوم! زه په خپله پکره (فقره) بندي یم. میر صاحب ویل چي د کاکا خبره صحیح وه. ځکه نوموړې فقره یعني د مشروطیت ظهور د ډاکټر غني سره تړاو نه درلود بلکي د دې نهضت ځوانان پوه او لایق اشخاص ول چي د خپلي رایي او ارادې استقلال ئې درلود (جنبش مشروطیت در افغانستان: ۵۹ـ۶۰ مخونه؛ ظهور مشروطیت و قربانیان استبداد: ۱۰۵ مخ).

د ۱۳۱۹ په حمل (۱۹۳۰ میلادي) کي چي میر صاحب [میر سید قاسم] تر اوو کالو قید وروسته خوشي سو، نو دوستان د ده د لیدو له پاره کور ته راتلل. یوه ورځ لیکوال محمد قدیر خان تره کی، چي څه موده د مطبوعاتو رئیس وو، د میر صاحب لیدلو ته راغی. د مصاحبې په جریان کي ئې ترې وپوښتل چي آیا د کاکا سید احمد خان او د محبس د هغه بندیوان تر منځ واقعاً هم هماغه سوال او ځواب سوی وو په داسي حال کي چي ډاکټر غني حاضر هم وو؟ میر صاحب تایید کړه چي هو هغه پوښتنه او هغه ځواب په هماغه ترتیب رښتیا دي، ځکه هغو اشخاصو چي د مشروطیت په ظهور کي ګډون درلود ټوله یوازي د خپل ځان په اراده او درایت سره په دغه نهضت کي شامل سوي ول (ظهور مشروطیت و قربانیان استبداد: ۱۰۵ مخ).

په ۱۹۱۹ کي د امان الله خان په واکمنېدو سره ټول سیاسي بندیان آزاد سول چي کاکا سید احمد خان هم پکښې شامل وو. کاکا د امان الله خان د پاچهۍ پر مهال پر عین وخت دوې وظیفې لرلې (د ابتدائیه ښوونځیو آمریت او د شاهي غنډ تدریس)، پر دې علاوه،

د سواد ښوونې خپل طرز ئې هم مخته ښوی چې د کندهاري کاکا په طرز سره مشهور سو. هغه د حساب يو کتاب هم په دري ژبه تألیف کړی دئ (جنبش مشروطه خواهی در افغانستان: ۲۶۶-۲۶۷ مخونه).

کاکا سيد احمد صريحه او ربنتيا ويونکې لهجه لرله. د اماني دورې تر اواسطو پورې د خلکو او دربار په وړاندې ډېر محترم وو او په اکثرو علمي او ادبي محافلو کې به ئې ګډون درلود او مشورې به ښې اخيستل کېدې.

مولوي محمد حسين هندوستاني وايي چې: «ما د امان الله خان په وخت کې دا پېښې بيان کړې، نو اعليحضرت دی ور وغوښت او داسې تنبلان او پخ ذهنه انسانان ئې وروسپارل چې پخپله دی هم په پوهېدی چې دا خلک هيڅ تعليم نه سي اخيستلای. خو يوه مياشت وروسته هغوی د حيرانۍ وړ امتحان ورکړ چې په بدله کې ئې سيد احمد خان ته د هغه يو لک روپيو جايداد بيرته ورکړ چې د امير عبدالرحمن خان له وخته ضبط وو او په ښوونځيو کې ئې د لومړنيو ټولګيو تعليم هم د ده شاګردانو ته وسپارى. بيا ئې په پوځ او پوليسو کې د هغه ترويج راپيل کړ.

په دې ټولو چارو کې د معارف وزير سردار محمد سليمان خان په ښو ولولو سره کومک وکړ. وروسته دا نوې قاعده په ټول افغانستان کې خپره سوه..... لنډه دا چې د سيد احمد خان نوم په ټول هيواد کې مشهور سو...

ده به خپلې مځکې خرڅولې او په پيسو به ئې د معلمانو سره مرسته کول، زده کوونکو ته به ئې انعامونه ورکول او په دې ډول په ټول اولس کې د ده قاعده تکثير سوه...

له اروپا، ترکيې او بخارا څخه د ښوونې روزنې يو نوی ږغيز سيستم (فوني ټيک سيستم) کابل ته وارد سو او ما هغه په يو مکتب کې شروع کړ. خو سيد احمد خان د هغه ښه مطالب هم په خپله قاعده کې شامل کړل بلکې هغه ئې اصلاح هم کړل.

وروسته د سيد احمد خان د ښوونې دغه طرز اردو ژبې ته هم د «نادر قاعده» په نوم ترجمه او خپور سو» (انقلاب افغانستان: ۹۵-۹۶-۹۷ مخونه).

خو سيد مسعود پوهنيار بيا وايي چې: د کاکا دغه طرز د ښوونځي د ماشومانو له پاره يو څه ثِقلت درلود، نو کله چې مير صاحب [امير سيد قاسم] د معارف په وزارت کې د مستشار په حيث دنده لرله داسې صوتي اصول ئې تهيه کړل چې له مخې ئې معلم د الفبا د هر توري د ږغ په افاده کولو سره هغه شاګردانو ته ورزده کاوه. دا طرز چې د اعليحضرت امان الله خان خوښ سو، نو په معارف کې ئې رواج کړ او پخپله پاچا هم کله کله عسکري مکتب ته ورتى او هلته ئې عسکري شاګردانو ته همدا درس کاوه چې په «صوتِ غازی» سره مشهور سو. نو هغه وو چې د کاکا سيد احمد خان زوی مرحوم عبدالرحمن خان لودين يوه ورځ په خصوصي ډول پر مير صاحب باندې ګيله آميزه انتقاد وکړ چې تاسې صرف د امان الله خان د خوشحالولو په خاطر د غازي نوی طرز ايجاد او د کاکا طرز مو لغوه کړ (ظهور مشروطيت وقربانيان استبداد: ۱۴۶-۱۴۷ مخونه).

په هر صورت، د کاکا په طرز کې د الفبا د تدریس اساس د حروفو پر آواز باندې تکیه وو. برعکس په بغدادي قاعده کې شاګرد د الفبا تدریس نه سو حفظ کولای بلکې علی الفور د «آب»، «آخ» او «آرد» ساده کلمې تدریس کېدې. د ده د طرز تدریس د امان الله خان تر عصر وروسته د «غازي په اصولو» سره شهرت وموند او مولوي عبدالباقي خان او امیر افغان د هغه صلاحیت لرونکي معلمان ول. نن د یونس سواد زده کولو اصول پر همدې رغیز طرز باندې په تکیه سره پراختیا مینډلې ده (جنبش مشروطه خواهی در افغانستان: ۲۶۷ مخ).

پوهاند سید سعدالدین هاشمي وایي چې: ما د کاکا سید احمد خان لودین د زوم محمد حسن خان ولد تاج محمد خان بلوڅ پغماني سره مصاحبه کړې او هغه د کاکا له خولې راته وویل چې د ټولو مشروطه غوښتونکو شمېر تر نهه سوو (۹۰۰) هم زیات وو. ډېری د هغوی قومي کسان، د نفوذ خاوندان او د وسلو لرونکي ول. هغوی شفاهي موافقه کړې وه لاکن نومونه ئې په لیست کې نه ول. د کاکا له قوله اول ځل یو تعداد منورو افغانانو د ګوند د جوړولو په هکله خپل منځي موافقه وکړه. د دې تر څنګ ځینو غړو داسې وپتېیله چې یو څو هندوستاني مستخدمین دي هم دغه جمعیت ته راشامل کړل سي تر څو په دې ډول نور غړي هم راجلب کړو. نو هغه وو چې ډاکټر عبدالغنی خان او یو شمېر نور هندوستانیان د جمعیت غړي سول. همدا راز د ده د زوم له قوله کاکا ویل چې د ګوند د جوړښت د هماغه لومړني پړاوه کوښښ کېدی چې د خلکو هر ګروپ یعني ملکي او نظامي پرسونل، روحانیون او کسب کاران د هغه غړیتوب حاصل کړی. دا ځکه چې دغسې کار د ګوند د ټینګښت، پیاوړتیا او پایښت باعث کېږي (جنبش مشروطه خواهی: ۲۶۶ مخ).

یو ځل بیا پوهاند هاشمي: کاکا سید احمد خان چې د خپل ژوند ۳۲ کلونه په زندان کې تېر کړي ول، یو عالم او فاضل شخص، له رښتیانیو هیواد پالو څخه وو او په هیواد کې ئې اصلاحات غوښتل. لکه څنګه چې ویل کېدل چې کله اعلیحضرت امان الله خان پکتیا ته تللی وو، نو د یو لیک په ذریعه ئې د امان الله خان پر تګلارو انتقاد وکړ او د یو مکتوب په ترڅ کې ئې ورته لیکلي ول چې په هیواد کې له کوچني مامور څخه نیولې تر پاچا پورې ټوله بارکزیان دي، د دې قوم بازۍ څخه خطرونه احساسېږي داسې نه چې پاچهي سقوط وکړي. اعلیحضرت امان الله خان کابل ته په راستنېدو سره د کاکا دا انتقاد معقول وباله او د اوضاع د اصلاح د کولو وعده ئې ور کړه.

همدا راز د کاکا له خولې هغه څو واره خپلو ملګرو ته ویلي ول چې: «کوم ډول حکومتي طرز چې موږ او تاسې غوښت و نه سو، نو راځئ چې جمهوري حکومت رامخته کړو» (جنبش مشروطه خواهی: ۲۶۷ مخ).

کاکا بالاخره د ۱۳۰۶ شمسي کال د یکشنبې په ورځ چې د حوت ۱۴ نېټه وه (۱۹۲۷ میلادي)، د کابل د توپچي باغ د کوڅې په خپل کور کې د ۷۲ کالو په عمر وفات سو او د شهدای صالحین د هدیرې د محمدرفیق خان لودین په حضیره کې ښخ سو (جنبش مشروطیت در افغانستان: ۳۵ مخ).

عبدالرحمن خان لودین (چي په کبریت یعني اورلگیت سره مشهور دئ) او د مشروطه خواهانو د دوهمي ډلی فعال او تندخویه غړی وو، د همدې کاکا سید احمد خان زوی دئ. تر دې چې نوموړي په ۱۹۱۸ کي پر امیر حبیب الله خان د توفنگچې ټکان وکړل خو هغه بچ سو. الله دي پلار او زوی د ټولو مسلمانانو په شمول مرحوم او مغفور ولري ـ آمین، والسلام (ن. صمد).

**اړونده مأخذونه:**


۱. جنبش مشروطیت در افغانستان، پوهاند عبدالحی حبیبی، کابل، ۱۳۶۳ شمسی.
۲. ظهور مشروطیت و قربانیان استبداد در افغانستان، سید مسعود پوهنیار، سبا کتابخانه، پشاور، ۱۳۷۵ شمسی.
۳. جنبش مشروطه خواهی در افغانستان، پوهاند سید سعدالدین هاشمی، شورای فرهنگی افغانستان، ستاکهولم، سویدن، ۱۳۸۰ شمسی (۲۰۰۱ میلادی).
۴. از جنبش مشروطه تا دولت مشروطه در افغانستان، دوکتور اجرالدین حشمت؛ ناشر: مؤلف؛ ویټبی، کاناډا، ۱۳۸۶ شمسی (۲۰۰۷ میلادی).
۵. انقلاب افغانستان، محمد حسین خان، جالندر، هندوستان، ۱۹۳۰ (په اردو ژبه).
۶. افغانستان در مسیر تاریخ، میر غلام محمد غبار، مطبعه دولتی، کابل، ۱۳۶۴ شمسی (۱۹۶۷ میلادی).
۷. د افغانستان تاریخی پېښلیک، پوهاند عبدالحی حبیبی، بیهقی مطبعه، کابل، ۱۳۵۳ لمریز.
۸. افغانستان در پنج قرن اخیر، میر محمد صدیق فرهنگ، انتشارات درخشش، مشهد، ۱۳۷۱ شمسی.


شیخ عبدالغفور خروټي:

## دوخت درې لوښي

### پرون ورځ – نن ورځ – سبا ورځ

په پرون پسي افسوز کوو. نن ورځ په غفلت راباندي تېره سوه. د سبا ورځي په امید یو، چي ګوندي یو ښه عمل پکښي تر سره کړو نه مو له پرون څخه پند واخیست؟ نه مو د نن ورځي سستي ورکه سوه نه مو د سبا هیله سر ته ورسېده د "وخت" دا درې لوښي دي چي موږ وخت په وخت خطاباسي. که موږ د نن کار سبا ته پرېږدو نو د سبا کار به هم بل سبا ته پرېږدو.

په حقیقت کي هغه یوه ورځ ده چي "سبا" نومېږي، چي د "نن" ځای ته راځي او دغه "نن" بیا د پرون په نامه یادوو، "پرون" د ژوند د کتاب متن دئ، "نن ئې معنا ده او "سبا" ئې تفسیر دئ.

زموږ ټوله عمر په افسوز، غفلت او امید کي تېر سو. موږ تر اوسه په هغه پروني متن کي بند پاته یو او د غفلت په معنا او مفهوم پوه نه سوو او د امید د سبا تفسیر ته و نه رسېدو. دا وو زموږ د ژوند مجموعه د وخت درې لوښي یو په پل پسي راځخه رواني دي او موږ په یوې کي لا خپل مقصد پیدا نه کړ.

ایا زموږ "سبا لا له تورو تیارو څخه نه دئ راوتلی؟ او موږ لا د غفلت له خوبه نه یو پاځېدلي؟ او د "پرون" د لور څخه مو لا عبرت نه دئ اخیستی؟

محمدهارون خپل شعشعي/لندن

# د بي بي شمسو د افغاني غيرت درسؤنه

خدای تعالی د برخؤ په ازلي وېش کښي و افغانانؤ ته د غيرت، وطنپالني او خپلواکۍ ساتني درنه برخه ور کړې ده؛ او دقيقاً دغه دليل دئ چي زمؤږ د وياړلي هيواد (ګران افغنستان) تاريخ، له باباآدمه تر دې دمه له نه هېرېدؤنکؤ حماسو او کارنامو څخه ډک دئ. په دغه راز شاندارؤ ملي حماسو او کارنامو کښي، د تؤرياليېؤ نارينه ؤؤ تر څنګ د دې غيرتي او ناتسخيرېدؤنکي خاوري زړوَرؤ مېرمنؤ او پېغلؤ هم ستري او فعالي ونډې اخيستي دي.

د خواشينۍ ځای دا دئ، چي زمؤږ د زرين تاريخ دا ريښتيني ملي اتلان تر اؤسه لا په سمه او دقيقه توګه نه دي پېژندل سوي؛ پرتميني حماسې اوکارنامې يې د زمانو تر دوړؤ اوګرزو لاندي هېري سوي دي. د دې دليل له مخي نو دا ارزښتناک رسالت او مسؤليت زمؤږ د سترګه وَرؤ مؤرخانؤ، څېړؤنکؤ او ليکوالؤ پر اؤږو پروت دئ، چي د خلګو له شفاهي نکلو او روايتو څخه نيولي بيا د هيواد د تاريخ په پټؤ اوتتؤ کؤنجوکښي تر مستندؤ او مؤثقؤ څېړنؤ پوري، د دې خپلواک او استعمار دؤښمن هيواد د دغسي نؤموَرکؤ ننګياليېؤ بچانؤ او زړورؤ خؤندؤ – مندؤ و لا ښې پېژندني ته ملاوي وتړي.

د دغه راز زړوَرؤ، آزادۍ غؤښتؤنکؤ او سرلوَړؤ افغان مېرمنؤ له ډلي څخه يوه هم بي بي شمسو ده، چي حماسې او مجاهدې يې د پښتو او پاړسي د عارف شاعر– علي محمد مُخلص (تر ۱۰۶۹ هـ ق پوري په يقين سره ژوندی) په ارزښتناک ادبي، تاريخي او عرفاني اثر (حالنامۀ بايزيد روښان) کښي له پراخؤ تفصيلاتؤ سره راغلي؛ خؤ د هيواد معاصرؤ مؤرخينؤ او محققينؤ يې، لکه څنګه چي ښايي، تر اوسه په خپلؤ ليکنؤ او څېړنؤ کښي د پېژندني او نمانځني حق نه دئ اداء کړئ.

دا دئ په دې لنډؤ او ماتؤ ګوډؤ کرښؤ کښي ګران لوَستؤنکي د سرښندؤنکؤ افغانانؤ د زرين تاريخ د دې هوډمني او پر شانه تلؤنکي اتلي د وطنپالؤنکؤ حماسو او خپلواکۍ پالؤنکؤ مجاهدو له ځواږخو سره اشنا کؤؤ.

بي بي شمسو د شېخ حسن لور وه. شېخ حسن د بايزيد انصاري اورمړ (۹۸۰–۹۳۱ هـ ق) اکا ؤ، چي د پيروانؤ او مخلصانؤ په منځ

کښي په پیر روښان مشهوُر ۇ. پیر روښان د افغانانوٌ د استعمارضد سنگر د غښتلي اوُلسي مشر، عرفاني لارښود او وتلي فرهنگي شخصیت په توگه و هیڅ راز پېژندگلوۍ ته اړتیا نه لري. د مغوُلي تاړاکگروٌ په وړاندي د هغه له ببباکوٌ معرکو، د پوهي او روٌڼا په خپروَلوٌ کښي د هغه له ارزښتناکوٌ علمي- فرهنگي کوښښو او د افغانانوٌ د فکري او عقیدتي تنویر په مؤخه د هغه له عرفاني مجاهدو سره پر خپلوٌ خلگوٌ سربېره، د سیمي او نړۍ مؤرخان او څېړوٌنکي هم پوره اشنایي لري.

«حالنامه» د دې زړوَري او خپلواکۍ مَیني افغان مېرمني د واده په اړه داسي کاږي: «کله چي شېخ حسن، د [قاضي] عبدالله وروړ[د پیر روښان پلار] وپوهېدئ، چي بایزید سپېڅلی او نېک سړی دئ؛ او په مال کښي یې زیاتېدوٌنکي برکت دئ، نو یې خپله لور و هغه ته په نکاح کړه...» (مُخلص: ۳۰).

د دې مړنۍ، هوښیاري او عارفي مېرمني په لمن کښي داسي رشید، پیاوړي او زمریالي زامن (شېخ عمر، خیرالدین، نورالدین، کمال الدین او جلال الدین) و زو کېدل، چي نه یوازي یې خپل سروٌنه د افغانانوٌ د تاریخي برم د ژوندي ساتلوٌ په لار کښي جار کړل، بلکي راتلوٌنکوٌ نسلو یې تر لږ و ډېر اَوُیاوٌوٌ کالوٌ پوري د گورگاني مغوُلوٌ د ظالمانه واکمنۍ پر خلاف د افغانانوٌ د خپلواکۍ بخښوٌنکي غوٌرځنگ بیرغ رپانده ساتلئ ۇ. دې هوډمنوٌ ننگیالو په خپلوٌ نابرابروٌ استعمارضد مبارزو کښي هیڅکله د یرغلگروٌ مغوُلوٌ او د هغو د مزدوروٌ واکمنانوٌ و ناروا راج او تاراج ته سروٌنه ټیټ نه کړل.

د حالنامې له روایت سره سم، پیر روښان د خپل عرفاني سفر په لوٌمړییوٌ پړاوو کښي وخلوت او عزلت ته مخه کړه. بي بي شمسو د هغه له دې جلاوالي او گوښه توب څخه ډېره اندېښمنه او خواشیني وه. مُخلص، په دې اړه داسي کاږي: «بي بي شمسو بېرېدله، چي خدای مکړه پیر دستگیر قدس سره [پیر روښان] قلندر سي؛ کور پرېږدي؛ او پر بله مخه و نیسي... پیر دستگیر قدس سره [د بي بي شمسو د اندېښنې په جواب کښي] داسي و ویل : غواړم په بیدیا کښي حُجره جوړه کم؛ شپه و روځ هورې تېره کم؛ او د نړۍ له خلگو څخه بېل د خدای په ذکر او فکر بوخت اوسم... په دې وخت کښي نابېره د لوی څښتن له خوا دا ږغ وسوٌ: اې بایزیده! ته د مشاهدې و مقام ته رسېدلئ یې؛ ستا وړ نه ده، چي نور په بیدیا کښي استوگه وکې؛ ته باید نور په خپل کور کښي زما په لېدو او مشاهده بوٌخت اوسې؛ شکر مي اداء کې چي له شِرکه مي و ایستې؛ او پټ رازوٌنه مي در وښیل...» (مُخلص: ۸۸).

بي بي شمسو په داسي حال کښي چي اوُمیدواره هم وه، له څینوٌ نوروٌ مُریدانوٌ سره یو ځای په خپل کور کښي د پیر روښان پر لاس د عرفاني څلوېښتي تغر غوَړیې؛ رېږوٌنه او کړاوٌنه گالي، چي له دې لاري د نفس و سپېڅلتیا، د عرفاني اسرارو و مؤندني او د توحید و پوهي ته ځان و رسیي (مُخلص: ۹۵- ۹۶).

په دې ډَول، بي بي شمسو د روښاني طریقت لومړۍ ښځینه لاروۍ وه، چي د یوه

بې مثله ذات د پېژندنې او خپلوَلو دپاره يې د اتو عرفاني مقامو (شريعت، طريقت، حقيقت، معرفت، قربت، وصلت، وحدت او سکوُنت) تېروَل شرط گڼل. «حالنامه» د جلا جلا نوُمو په يادوَلو سره کاږي، چې تر بي بي شمسو وروسته د کلي کور ځينو نورو ښځو هم د روښاني طريقت لمن و نيوله؛ او دا لړۍ د وخت په تېرېدو سره و هري خوا ته ډېره پراخه سوه.

د حالنامې له متن څخه په ډاگه ښکاري، چې ښځو په روښاني طريقت کښې ځانگړې او ارزښناک ځای لاره. «حالنامه» د پير روښان د ښځينه مريدانو او مُخلصانو په ډله کښې، د هغې سرسپارلي او وفاداري ښځي په زړه پوري کيسه بيانيي، چې يو وخت د روښاني غوُرځنگ له جنگيالو او نورو خواخوږو سره يو ځای د مغوُلي لښکرو په کلابندۍ کښې بندي وه. د دې بېباکي او مړنۍ افغان مېرمني په نکل کښې داسي راغلي دي:

پاچا [جلال الدين محمد اکبر، ۹۶۳هـ ق/ ۱۵۵۶ع – ۱۰۱۴هـ ق/ ۱۶۰۵ع] امر وکئ: «ټول روښاني بنديان زما تر نظر تېر کئ.» ټول بنديان يې د پاچا وحضوُر ته ور وستل. پاچا له هر يوه څخه د هغه د قبيلې پوښتنه کوله؟ هر يوه به د خپلي قبيلې نوُم اخيستئ؛ او پاچا به رخصت ورکاوه. په پای کښې د «خليلو» د قبيلې د هغې ښځي روَن و رسېدئ، چې «بسۍ» نوُمېدله. پوښتنه يې ځني وکړه، چې د کمي قبيلې يې؟ «بسۍ» ور ته وويل : روښانۍ يم. پاچا ورته و ويل: پوهېږم چې روښانۍ يې؛ خو دا پوُښتنه کوَم، چې د کمي قبيلې يې؟ بسۍ ورته ويې ويل: قبيله مې روښانۍ ده. بل قوم او قبيله نه لرم. پاچا يې په خبرو ډېر خوشاله سوُ؛ ورته و يې ويل: څه ستا قبيله دي بيا روښانۍ يي. تر دې وروسته «روښانۍ» د «بسۍ» لقب وگرځېد (مُخلص: ۴۳۸).

پير روښان د ځينو عرفاني پړاوو تر بشپړوَلو وروسته د سوداگرۍ تَکَل وکئ؛ او د دې مخسد دپاره يې د هغه مهال د لوی تجارتي او فرهنگي ښار، کندهار، لار واخيستله چي له يوې خوا و ځان او کورنۍ ته حلاله روزي و مومي؛ او له بلي خوا هورې د داسي کامل پير پلټنه او گروېږنه وکي، چې د ده په باور د اسرارو او توحيد په پوهه خبر يي (مُخلص: ۹۰).

پر کاروانيانو او نورو بوُمي کندهاريانو يې د هغه مهال د مغوُلي واکمن – بيرام خان (په ۱۵۶۱ع کښې مړ) د سپاهيانو او مزدورانو د زور زياتي تر لېدو وروسته، مغوُلي ضد احساسات لا پر خوُټېدو سوه. کور او کلي ته د پير روښان تر ستنېدو وروسته سمدستي د اوسني افغانستان د جنوُبي او ختيځو سيمو يا د هغه وخت د «روه» او «پښتونخوا» په دښتو، غرو او لمنو کښې د گورگاني مغولو د ظالمانه او مستبد نظام پر خلاف د جگړې او مقاومت اورونه بل سوه. بي بي شمسو او غښتلي زامن يې د پاڅېدلو افغانانو د خپلواکۍ بخښوُکي غوُرځنگ په دې نه هېرېدونکو حماسو او معرکو کښې د پير روښان تر څنگ ولاړه وه.

د بېرحموُ مغوُلي واکمنانو او ځايي مزدورو ډلو ټپلو پر ضد د پير روښان نه ستړي

کېدونکي اؤلسي مبارزې اؤږده کلونه رواني وې. هغه په دې سپېڅلي او ویاړلي لار کښې وهل ټکول، بند زند او بالاخره سربښندنه و منل، خو د پردو مغولو او خپلو مزدورو حاکمانو و ظلم او تاړاک ته تسلیم نه سو. د پیر روښان تر شهادت وروسته د غیر تمنو افغانانو د استعماري ضد مبارزو او معرکو مشري د هغه و مشر زوی – شېخ عمر ته وسپارل سوه؛ او په دې توګه د دې ننګیالۍ خاوري په هسکو غرو او پراخو دښتو کښې زموږ د مړني اؤلس د ازادۍ پالونکو حماسو او مجاهدو لوړي جنډې د پخوا په څېر رپانده وساتل سوې. د دې سرلوړي وطن سمه او غر د مغولي لښکرو پر ضد د قهرمانۍ او جانبازۍ مورچل و.

په خواشینۍ سره، څه موده وروسته، شېخ عمر له دوو سکه ورونو (نورالدین او خیرالدین)، یوه ناسکه ورور (دولت) او څینو نورو غښتلو روښاني ملګرو سره یو ځای، د تاړاکګرو مغولو د جاهلو مزدورانو له خوا په هغه جګړه کښې په ډېري بې رحمۍ و وژل سو، چې په تاریخ کښې د لویې غزا په نامه یادیږي.

تر دې غمجني پېښې وروسته څینو پلورل سوو او بې رحمو اجیرانو د شېخ عمر او دولت پرې سوي سرونه د خیرالدین له یوه لاس سره و بي بي شمسو ته ور وړه. زړوري او مېړه مخي پښتني مور، بي بي شمسو، د شېخ عمر او دولت د سرو او د خیرالدین د لاس تر مچولو وروسته و ویل:

«پر تاسو دي د خدای رحمت يي، چې په ټینګ هوډ سره ولاړاست؛ ځانونه مو د حق په لارکښي و ښندل، خو خپله اراده مو پرې نښوولَه.» ورپسې يې «یوسفزو» ته مخ ور واړوه؛ او ویې ویل: «زما زامن پر غلا او زنا نه دي وژل سوي، چې سرونه مو يې پرې کړي؛ او ما ته مو را وړي دي. زما زامن مړونه ول. ستاسي ډېر يې تر تېغ تېر کړل؛ په پای کښې خپله هم و وژل سول؛ او دا ګرده د خدای تعالی له لوري ګنم؛ کنې تاسي دونه واک او قدرت کله لرئ، چې زما و بچانو ته بدي و رسوئ.» (مُخلص: ۴۲۷).

دا دئ د یوې خپلواکۍ مینې، زړوري او باغروره پښتنې مور د زغم، صبر او عرفاني تفکر هغه لوړه او بې ساري بولګه، چې مثال يې نه یوازي د دې هیواد، بلکي د نړۍ د نورو هیوادو په تاریخو کښې هم ډېر لږ موندل کیږي.

د روښاني طریقت د خلیفه او د پښتو د نومیالي عرفاني شاعر – دولت لواني (تر ۱۰۶۹ هـ ق پوري په باوري توګه ژوندی) په دېوان کښې له دې بیت څخه په څرګنده ښکاري، چې د پیر روښان زامنو پر زړورتوب او نارینتوب سربېره، په تقوا او عرفاني مجاهدو کښې هم نوم وړی و. هغه وایي:

**نورالدین، خیر الدین، کمال الدین، دولت، شېخ**
**په کـــوښښ يې خـــپل وژلئ نفس کافـــر و**

د بی بي شمسو د مشرانو زامنو د شهادت تر ویرجني او دردناکي پېښي وروسته، د افغان اؤلس د خپلواکۍ غوښتونکي غوځنګ مشرتوب د هغې و تر ټولو کشر زوی، جلال الدین، ته ورسېد. هغه په داسي حال کښي، چې عمر يې تر پینځلسو – شپاړسو کالو زیات نه و، خپل زړوَر پلار او غښتلو ورونو غوندي د مظلومو افغانانو د بېرحمو دوښمنانو

پر خلاف د جگړې و ډگر ته ور و دانگل؛ او په هر مورچل کښې په ډېر رشادت او شهکارۍ د مغؤلي واکمنانؤ او د هغو د خايي مزدورانؤ په وړاندي نه ماتېدؤنکي مقاومتؤنه وکړل. بي بي شمسو او د پير روښان د کورنۍ نور پاته غړي هم په دې نه هېرېدؤنکؤ حماسو او معرکو کښي له جلال الدين سره څنگ پر څنگ ملگري وه.

جلال الدين د خپلو ملي او اؤلسي مبارزو په ترڅ کښي يو وخت د مغؤلي پوځو د فشار په وجه دې اړ سو، چي مېرمن او د کورنۍ نور غړي موقتاً په باجوړ کښي پرېږدي؛ او خپله له ځينؤ ملگرؤ سره د کابل او هندوکش له لاري و بلخ ته ولاړ سي؛ او د هغه مهال د بلخ او ماوراء النهر د واکمن، د سکندرخان له زوی عبدالله خان، څخه د نظامي کومک په تر لاسه کولؤ سره، د روښاني غؤرځنگ د اتلؤ مدافعانؤ و ليکؤ ته نوی واک او ځواک ورکي. بي بي شمسو له خپلي ناوي او ځينؤ نورؤ نيږدې خپلوانؤ سره و خوست ته ولاړه، چي په دې توگه د «وزيرؤ» په قبيله کښي د مغؤلي لښکرؤ له تاړاکو څخه ځانؤنه خؤندي وساتي. دا پېښه په زرم هجري قمری کال (۱۰۰۰ هـ ق) وسوه. د جلال الدين زوی - الهداد (وروسته په رشيد خان ملقب؛ په ۱۰۵۸ هـ ق کال د هندؤستان په آورنگ آباد کښي مړ؛ او بيا په شمس آباد کښي ښخ) د دغؤ جنگي او اضطراري حالاتؤ په شپو او روځؤ کښي د ملک قاسم خان بنگښ له لور، بي بي بصرې، څخه وزوکېدئ (مُخلص: ۴۲۷).

بي بي شمسو په سيمه کښي د مغؤلي لښکرؤ د بريدو و بېلابېلؤ خطرو ته په پام سره د «وزيرؤ» په قبيله کښي د جلال الدين د مېرمني، ماشؤم او دکورنۍ د نورؤ غړؤ استوگنه خؤندي و نه گڼله؛ ځکه يې نو د «دادک کنداري» په لارښووَنه، له خوست څخه و شال (اوسنۍ کوټې) ته مخه کړه؛ او هورې يې د حالنامې د عالِم او فاضل ليکوال، علي محمد مُخلص، د پلرني نيکه (عثمان کاسي) په کورنۍ کښي سرؤنه نيهام کړل. د پښتو لوړ او پياوړی عرفاني شاعر – ميرزا خان انصاري اورمړ (په ۱۰۴۰ هـ ق کال، د دکن په جنگ کښي مړ)، چي په لو غزا کښي د پلار (نورالدين) تر شهادت وروسته کؤچنی يتيم پاته ؤ، هم په دې سفر کښي له دی سره ملگرتيا کوله (مُخلص ۴۵۶).

تر هغه مهاله، چي جلال الدين په بلخ کښي ؤ، بي بي شمسو د کورنۍ له نورؤ غړؤ سره په «شال» کښي اوسېدله. لکه څنگه چي «حالنامه» ليکي، دغه وخت په «شال» کښي هم د خپلواکۍ غؤښتؤنکؤ مبارزينؤ پر ژوندانه د مغؤلي واکمنانؤ د بيري او وحشت کرغېړن سيوری پروت ؤ. د عثمان کاسي دکورنۍ غړي د پير روښان د مخلصؤ خواخوږؤ په توگه ډېر انديښمن وه، چي خدای مکړه د کلي کور جاسؤسان او غمازان د «پښين» يا «کندهار» و مستبدؤ مغؤلي واکدارانؤ ته مخبري وکي؛ او په دې توگه يې د قدرمنؤ او ښاغلؤ مېلمنو ژوند له جدي خطر سره مخامخ سي.

بي بي شمسو او د کورنۍ نور غړي يې و تيراه ته د جلال الدين تر ستنېدو وروسته، بيرته له هغه سره يو ځای سول؛ او په دې

ترتیب د مغوّلي حکمرانانوّ پر خلاف د افغانانوّ د استعمارضد مبارزو لړۍ یو پلا بیا په ډېر زور او شدت پیل سوه.

په یو زر و نهم هجري قمري (۱۰۰۹ هـ ق) کال د روښاني غوّرځنګ له لیکوّ سره د علي محمد مُخلص د پلار – ابوبکر کنداري (په ۱۰۳۴ هـ ق کال د هندوّستان د اوړیسې په «میدني پور» کښي مړ) او نوروّ غښتلوّ کنداري جنګیالو تر یو ځای کېدو وروسته، د مغوّلي اشغالګروّ او ځایي مزدوروّ واکمنانوّ پر ضد زموّږ د غیرتي خلګوّ په خپلواکۍ بخښوّنکوّ ملي مبارزو کښي نوې سا پوّ سوَه. لکه ځنګه چي د حالنامې لیکوال کاږي، د روښاني غوّرځنګ نوّمیالی مشر، جلال الدین، د نَوّوّ ورغلوّ کنداري یارانوّ په لیدو ډېر خوَښ سوّ. « کله چي بي بي شمسو رضی الله عنها ته ورغی، له خوشالۍ یې ورته وویل:

ګراني موري! مبارک دي سه! درې سوه سپاره وسله وال زامن دي راغله.

بي بي ور غبرګه کړه: ستا دي هم مبارک سي.» (مُخلص: ۴۲۷).

د حالنامې له دې بیان ځخه په پوّره صراحت ځرګندیږي، چي بي بي شمسو د روښاني سرتېروّ د وسله والوّ مبارزو د روحاني مشري په توګه یوه شبهه هم د روښاني غوّرځنګ له لوړوّ او ژروَروّ ځخه بې خبره نه وه.

په خواشینۍ سره تر دې تاریخي پېښې وروسته د بي بي شمسو د ژوندانه په اړه ځه روښانه او مستنده خبره نه تر ستر ګو کیږي. د «حالنامې» له متن ځخه بس دوّنه، هغه هم په ضمني ډَوَل، نتیجه اخیستل کیږي چي دا غیرتمنه، هوښیاره او عارفه مېرمن په یو زر و دولسم هجري قمري (۱۰۱۲ هـ ق) کال د خپل پینځم او کشري زوی، جلال الدین، تر شهادت وروسته، نور د ژوند پر مېنه نه وه (خدای په حقیقت ښه پوهېږي).

د دې هوډمني او پر شا نه تلوّنکي افغان مېرمني د خپلواکۍ مَینوّ زامنوّ تر پر له پسې شهادتو وروسته د هغې لمسیانوّ او کړوسیانوّ هم کلوّنه کلوّنه د خپلوّ نومیالییوّ مشرانوّ په شان د مغوّلي یرغلګروّ او د هغو د سیمه ییزوّ مزدوّرانوّ پر خلاف د افغانانوّ د پتمني مبارزې بیرغوّنه رپانده وساتل؛ او د سرسپارني پر توّدو سنګرو سربېره یې د هیواد په فرهنګي او عرفاني برخو کښي هم ډېر لوی او ګران بیه اثار په میراث پرېښووَل.

د ډېر ویاړ او غروّر ځای دئ، چي د افغانانوّ سپېڅلي او ویاړلي مېنه هیڅکله د تاریخ په اوّږدو کښي د بې بې شمسو غوّندي زړوروّ او مجاهدوّ مېرمنوّ له وجوّده خالي نه وه او نه ده. د دې غیرتي خاوري په غرو او دښتو کښي هره افغانه مور او خور د بي بي شمسو، سپیني ادې، ملالۍ او داسي نوروّ له پښته دي. سپېڅلي ارواوي دې ښادي؛ او لوړي کارنامې دې تل تر تله ژوندۍ یي.

مأخذ:

مخلص، علی محمد. حالنامهٔ بایزید روښان. نقل از سرمحقق دوست شینواری و معاون سر محقق نورالله اولسپال. کابل: پښتو ټولنه، مرکز زبانها و ادبیات، اکادیمی علوم افغانستان، ۱۳۶۴. (چاپ ګستتنری)

پاته په (۵۲) مخ کي



څېړندوی عبدالغفور لېوال/کابل

# اسطوره او ادبیات

پنځمه برخه

## هندي اسطورې

۲- مهابهارت، مهابهاراتا، مهابهارته (Mahabharata):

مهابهارت یوازې د هند نه، بلکې د نړۍ تر ټولو ستره حماسي - مذهبي منظومه اسطوره ګڼل کېږي. مهابهارت د بهارتانو د جګړو کیسې دي، چې ځیني کره کتونکي ئې متن تریوسلو شلو زرو بیتونو پورې شمېري (فرهنګ اثار: ۴۱۳۶ مخ، پینځم ټوک). فکر کېږي، چې دا منظومه د یوه شاعر نه، بلکې د ګڼو شاعرانو له خوا لیکل شوې ده، همدا راز باور پر دې دئ چې په یوه ټاکلي وخت کې هم نه ده لیکل شوې، بلکې په بېلابېلو زمانو کې پرې نوري برخې وراضافه شوي دي. یو شمېر اسطوره پېژندونکي فکر کوي، چې د مهابهارت د کیسې پېښه تر میلاد درې زره کاله پخوا پېښه شوې ده، خو دا چې د دې کیسې نظم کولو ته څه وخت او چا پیل کړی، سمه نه ده معلومه.

ځیني کره کتونکي فکر کوي، چې د دې کتاب تر ټولو مهمه برخه (بهګود ګیتا) یا سپېڅلې ګیتا له ۲۰۰ ځخه تر ۱۵۰ مخزیږدي پورې په اوسنۍ بڼه لیکل شوې وي (ګیتا ۱۶ مخ). ځیني نور ئې بیا تر میلاد مخکې د شپږمې پېړۍ په زمانه پورې تړي. ټول مهابهارت د بهارتیانو د جګړو د بېلابېلو برخو د کیسو تر څنګ ګڼې مذهبي، اخلاقي او حماسي کیسې هم لري، چې له مناجاتو، فلسفي افکارو، ستاینو او عرفاني مکالمو څخه ډکې دي. دا سخته ده چې تاسي اصلي متن له

هغو تفسیرونو څخه بېل کړئ، چې وروسته وروسته پرې اضافه شوي دي. د بېلګې په توګه ګیتا د (کرشنا) او (ارجن) تر منځ د یوه اوږده بحث ذکر رااخلي، چې پکښې مذهبي احکام او دلایل راغلي. کرشنا غواړي ارجن جګړې ته وهڅوي او قناعت ورکړي، چې دا یوه سپېڅلې جګړه ده، د همدې له پاره یوه مذهبي - فلسفي او اخلاقي موعظه ورته پیلوي، چې ښایي د حماسې په اصلي متن کې نه وي شامله. په ګیتا کې شپږ لومړنۍ ویناوې د ځانپېژندنې، نورې شپږ ویناوې ئې د خدای پېژندنې او وروستۍ شپږ ویناوې ئې د لومړنیو بحثونو تفسیراو بېلګې بیانوي (ګیتا: ۵۸ مخ). مهابهارت له سلو څخه تر یوسلوشلو زرو بیتونو پورې یوه لویه مجموعه ده او پر اتلسو کتابونو یا پربونو یا پراوا (Parva) ګانو وېشل شوې ده:

۱. لومړی کتاب (Adri Parva) د مقدمې برخه ده، چې د بهاراتا کورنۍ راپېژني.
۲. دوهم کتاب (Sabha Parva) هغه مجلس، چې د شاهي کورنۍ له خوا جوړ شوی دئ.
۳. دریېم کتاب (Vana Parva) ځنګله ته د پاندوانو د کورنۍ د تللو برخه ده.
۴. څلرم کتاب (Virata Parva) ویرات، د پاندوانو د پټو معلوماتو او چل ول کیسه.
۵. پینځم کتاب (Udyoga Parva) جګړې ته د دواړو لوریو چمتووالی.
٦. شپږم کتاب (Bahisma Parva) د بهشیم، بهسیم برخلیک (یو اتل او لښکر مشر).
۷. اووم کتاب(Drona Parva) د درون، د رونا برخلیک ( یو اتل او لښکر مشر).
۸. اتم کتاب (Karma Parva) د کرن برخلیک، د ارجن ورور، خو په کیسه کې له دوښمنانو سره ملګری شوی دئ.
۹. نهم کتاب (Salya Parva) سالیا، شلیه، برخلیک.
۱۰. لسم کتاب (Sauptika Parva) دا د شپې له خوا د پټو حملو او شبخونونو کیسه.
۱۱. یوولسم کتاب (Stri Parva) پر مړیو د ګندهارۍ او نورو مېرمنو د ژړاګانو ذکر.
۱۲. دولسم کتاب (Santi Parva) د تسلیت او ډاډګیرنې ذکر.
۱۳. دیارلسم کتاب ( Anusasan Parva) د خطابې برخه.
۱۴. څوارلسم کتاب ( Asvamedha Parva) داس د قربانۍ کیسه.
۱۵. پینځلسم کتاب (Asrama Parva) د یوازیتوب او انزوا کیسه.
۱٦. شپاړسم کتاب (Mausala Parva) د کرشن د مرګ پېښه.
۱۷. اولسم کتاب ( Maha Prasthanika Parva) ستر سفر (د همالیا لوړو څوکو ته د جنت په لټون).

۱۸. اتلسم کتاب ( Svargarohana Parva) جنت ته د ور رسېدلو کیسه.
کتاب په پای کې نوري ضمیمې هم لري، خو یادي اتلس برخې ئې د بهاراتا کورنۍ د تربګنیو د بېلابېلو برخو تفصیل دئ، چې د مهابهاراتا اصلي منځپانګه جوړوي.

د کیسې لنډیز:
د اوسني ډهلي شاوخوا سیمو کې د بهارات (د دوشیانته پاچا او شاکونتالا د میني مولود) کورنۍ ځایناستو شاهزویو پاچاهي کوله. په دوی کې پانډو پاچا (Pandu) چې پنځه زامن ئې درلودل ومړ او پاچاهي ئې ړانده ورور دریتراشترا (Dhritrashtra) ته پاتې شوه، چې سل زامن ئې درلودل. د دې ړوند پاچا په زامنو کې تر ټولو مشر (دریودهن) خورا حسود او کرکجن شاهزوی دئ، چې له خپلو تربرونو سره ټول عمر په شخړه کې دئ او نه غواړي، چې هغوی د خپل مړه شوي پلار په جایداد او پاچاهي کې کومه ونډه ولري.
یو ځل دریودهن نقشه جوړوي، چې د خپل تره پنځه سره زامن او د هغوی کورنۍ ووژني، د دې له پاره په خپله ماڼۍ کې د مذهبي جشن په پلمه یو لوی مجلس جوړوي او دوی هم ورته راغواړي. د دریودهن کسان ماڼۍ ته اور اچوي او غواړي په منډو منډو کې د تره زامن ټول سټ کړي، خو د پانډو زامن چې په نقشه خبر شوي دي له خپلې مور (کونتي) سره له پېښې ځخه ژوندي وځي او مخ په ځنګلونو تېښته کوي، چې بیا هلته دکلونو کلونو له پاره سخت ژوند تېروي. ځنګلونو ته نږدې په یوه بله پاچاهي کې یوه ورځ پاچا د لېندۍ ویشتلو لوبه جوړوي او یوه لویه لېندۍ رامخته کوي، چې که هر چا کش کړه او غشی ئې تر موخې ورساوه نو دی به ورته خپله لور په انعام کې ورکوي، پنځه واړه پانډوان دي لوبې ته ورغلي دي، په دوی کې یو ورور (بهیما) یو لوی پهلوان دئ، خو د پانډو دربیم زوی (ارجن) تکړه غشی ویشتونکی او نیمه اسماني موجود دئ، ځکه خو لوبه هم همدی ګټي، د پاچا لېندۍ راکاږي او غشی تر موخې وررسوي. پاچا په خوشالۍ سره ارجن نازوي او خپله ښکلې شاهزۍ (دروپادي) ارجن ته ورکوي، ورونه په خوشالۍ ځنګله ته راستنېږي، چې خپلې مورته زیری ورکړي. دوی له ځان سره ښکلې او نازولې دروپادي هم راروانه کړې ده، چې ګوري مور ئې په کوم کار بوخته ده، یو زوی په خپلې مور کونتي باندي غږ کوي : موري وګوره چې موږ څومره لوی ګنج راوړی دئ، مور لاهماغسي په خپل کار بوخته ده، پرته له دې چې پوه شي (ګنج) یوه نجلۍ ده خپل زوی ته ځواب ورکوي: ښه ده زویه ! په برابره توګه ئې خپلو منځونو کې سره وویشئ ! اوه دا څه وشول؟ بس د مور خبره اسماني حکم وو او غریبه دروپادي باید په یوه وخت کې د پینځو ورونو مېرمن شوی وای. کونتي کله چې په حقیقت پوه شوه، نو له خپلې خبرې ځخه پښېمانه وه، خو تقدیر داسې وو، چې هغې خپله خبره بېرته نه شوه اخیستلای، د (مور) امر پر ځای شو او پینځه واړه ورونو له یوې ښځې سره واده وکړ.
له دې کیسې ځخه د پانډو ورونو ړوند تره دریتراشترا خبرېږي او خپل وریرونه بېرته

دلاسا کوي او د خپل مړه ورور پانډو له جایداد څخه یوه برخه خپلو وربرونو ته وربخښي. پانډو کورنۍ خپل مشر ورور (یودشترا) د پاچا په توګه ټاکي او عادي ژوند پیلوي، خو دریودهن لا هم د رخې او تربورګلوۍ په اور کې سوزي او هره شېبه غواړي، چې د تره زامن وچیچي. دا ځل بله حیله سنجوي یودشترا قمار وهلو ته وربولي، له مشر پانډو یودشترا څخه بخت مخه ګرځولې، ځکه خو په قمار کې خپل ټول جایداد، ورونه او ښکلې مېرمن دروپادي بایلي، دریودهن دوی خپل غلامان او مینځې کوي، خو د پانډوانو تره دریتراشترا بیا پر وربرونو زړه سوی کوي او هغوی ته خپلواکي او جایداد بیرته سپاري، دریودهن بیا خپل تربور قمار ته بولي او دا ځل شرط ږدي، چې که هر چا قمار بایلوده نو ځنګله ته به ځي او پوره دوولس کاله به هلته تېروي، تر دوولسو کالو وروسته به یو کال په ښار کې پټ ګرځي، چې څوک ئې و نه پېژني .دا ځل هم یودشترا قماربایلي او د شرط له مخې یو ځل بیا له خپلو ورونو او کورنۍ سره ځنګله ته ځي. د شرط دوره چې پای ته رسېږي، نو پانډوان راځي او له دریودهن څخه خپل جایداد بیرته غواړي، خو دریودهن ئې نه مني، پانډوان په زارۍ ورته وایي ایله دومره زمکه راکړه، چې ژوند مو پرې وشي، خو تربور تربور دئ، دلته نو د ځینو قبیلو مشران د پانډوانو په پلوۍ دریږي او د خپل حق له پاره جګړې ته چمتووالی نیسي . د دوو ورونو د زامنو او نورو ملاتړو تر منځ د ستري جګړې د پیل ورځې دي. تر جګړې مخکې دواړه لوري سره کښېني او د جنګ قوانین ټاکي:

پیلان د پیلانو په وړاندي، بګۍ د بګیو په وړاندي او پیاده د پیاده جنګیالیو په وړاندي، هر څوک باید له خپل سیال سره وجنګېږي، هغوی چې تېښتي یا نیول کېږي، هغوی چې توروم (شیپور) او ډول وهي، ځناور او کمزوري وګړي باید و نه وژل شي. دا جګړه د (کوروکشترا) په دښته کې پېښه شوې ده (کوروکشترا د کوروانو سیمه مانا لري او دا د ستري قبیلې کوروانو زمکه وه، چې په دې جګړه کې ئې د پانډوانو په وړاندي جګړه کوله).

جګړه اتلس ورځې اوږده شوه، ارباب الانواعو هم پکښې خپل زور وواهه، (کرشنا) په دې جګړه کې زمکې ته راکوز شوی دئ او د (ارجن ) د بګیوان دنده پر غاړه لري، ارجن په اسانه جګړې ته غاړه نه ږدي خو کرشنا ئې په دې پوهوي، چې دا جګړه مهمه ده. د دوی دواړو خبرې اترې د مهابهارت د تر ټولو غوره کتاب (ګیتایا بهګودګیتا) منځپانګه ده. د مور له خوا د ارجن یو ورور (کرن) نومېږي، دی ئې مور په یوه اسماني پېښه کې له بل چا څخه زېږولی دئ، کرن په دې جګړه کې د خپلو ناسکه ورونو پر ضد د دریودهن له لښکر سره ملګرتیا لري، په اتم پرب (د مهابهاراتا په اتم کتاب یا فصل) کې د ارجن او کرن تر منځ د جګړې پېښې راغلي دي، چې تر اوږدې جګړې وروسته کرن د خپل ورور ارجن په لاس وژل کېږي.

دا لویه جګړه اتلس ورځې دوام کوي، چې پایله ئې د پانډوانو بریالیتوب او د بد تر بور (دریودهن) وژل کېدل دي. د پانډو پنځو زامنو جګړه وګټله او له خپلې مېرمن دروپادي سره یو ځای خپلې پاچهۍ ته ورستانه شول. تر دې وروسته یودشترا شپږ دېرش کاله پاچاهي وکړه. تر اوږدې پاچاهي وروسته ټولي کورنۍ، وروڼو او مېرمنې پرېکړه وکړه، چې د همالیا د غرونو څوکو ته ورشي چې د ارباب الانواعو د اوسېدو ځای دئ، دوی غواړي هلته جنت ته ځان ورسوي. په لاره کې ډېرې سختۍ راځي ځلور ورونه او دروپادي په لاره کي یو یو مري او یوازې یودشترا چې په دوی کې پاک سړی دئ او د ارباب الانواعو حریم ته د ورننوتلو اجازه لري ځان خپل مقصد ته رسوي. خو جنت ته رسېدل اسانه نه دي، له ده سره ئې سپی هم ملګری دئ، هلته د دروازې په خوله کې (اندرا) چې د سپیو واک ورسره دئ، د ده مخه نیسي او ورته وایي: ته ننوتلای شې، خو سپي ته اجازه نشته. یودشترا خبره نه مني او وایي دا زما رښتینی او وفاداره ملګری دئ او زه به له ده پرته ولاړ نه شم. د یودشترا او اندرا تر منځ اوږد بحث کیږي، چې پایله ئې د اندرا قانع کېدل دي، دا د یودشترا په مخکي لومړی ازمون وو، ځکه وروسته پوه شو، چې سپی په حقیقت کي د ده د ښو کارونو او صالحو اعمالو تجسم دئ.

اوس نو باید دوهم ازمون ورکړي او هغه داسې؛ همدا چې یودشترا جنت ته ننوځي نو ګوري، چې ټول دښمنان ئې هلته دي، سړی خپه کیږي او د خپلو وروڼو کورنۍ او دوستانو پوښتنه کوي. هلته ورته ویل کېږي، چې هغوی ټول په دوزخ کې دي، اوس نو ته پخپله پرېکړه وکړه، چې په جنت کې له خپلو دښمنانو سره اوسې که په دوزخ کي له خپلو دوستانو سره؟ تاسو پوهېږئ؟ عجیبه پېښه ده، ځوانمرده یودشترا پرېکړه کوي: (همدلته پاته کېږم، په دوزخ کي، ځکه هر هغه ځای چې دوستان پکښې وي هماغه زما جنت دئ!)

له دې پرېکړې سره یودشترا دوهم ازمون هم ګټي او تیاره خپله لمنه ټولوي، یوه سپینه روڼا پرک وهي او پاچا یودشترا او د هغه ټوله کورنۍ، وروڼه او خپلوان و ملګري ئې له ده سره یو ځای جنت ته ځي.

په دې توګه د مهابهاراتا لویه کیسه پای ته رسېږي.

اوس به د مهابهارت د یوې مهمې برخې، چې د هندوانو له پاره د سپېڅلي کتاب ځای لري، یعني د بهګود ګیتا له متن څخه یوه برخه په پښتو ولولو:

"... ارجن چې پر بیرغ ئې د بیزو څېره وه د (دریتراشترا) لښکر ولیده

چې جګړې ته ولاړ دئ او د وسلو بریښنا ئې ولیدله ، بیا یې خپله لیندۍ راوویستله او کرشنا ته ئې وویل:

زما بګۍ د دواړو لښکرونو منځ ته وروله، چې ټول جنګیالي ولیدلای شم.

غواړم پوه شم، چې سبا ته باید له چا سره وجنګېږو؟

غواړم وپوهېږم، چې څوک د بدنهاده (دریودهن) پر لوري دي او جګړې ته راغلي؟

سنجایا:

اې (بهاراتا) (کرشنا) لویه بګۍ، وخوځوله او د دواړو لښکرونو تر منځ ئې ودروله

هغه بګۍ د (بهیشما) او (درونا) تر مخ وروستله او د نورو پاچاهانو تر مخي ئې تېره کړه او ارجن ته ئې وویل: وګوره ټول کوروان د جګړې له پاره راغلي دي.

ارجن دواړو لښکرونو ته وکتل، پلرونه او نیکونه ئې ولیدل، استادان، ترونه او خپل ورونه ټول ئې تر نظر تېر کړل.

خپلو بچیو او لمسیو ته ئې وکتل، خپل خسران، ملګري او خپلوان ئې ولیدل.

څه ګوري، چې دواړو خواوو ته ئې خپل خپلوان ولاړ دي، ډېر غمجن شو او په خواشینۍ ئې وویل:

اې (کرشنا)! دا دئ خپلوان مي ګورم چې جګړې ته راوتلي دي.

پښې مي سستي شوې او غوني مي زیږه شول.

د (ګاندیو) لینده مي له لاسونو څخه لوېږي.

او د خان پوستکی مي سوزي.

زه نور نه شم درېدلای

زړه مي هغه ګرداب ته ورته دئ. چې په توندۍ سره څرخي.

زړه مي بده ګواهي راکوي.

کرشنا! زه نه بریالیتوب غواړم او نه پاچاهي او خوشالي.

د خپلو خپلوانو له وژلو څخه به څه تر لاسه کړم؟

بریا، خوشالي او ان پخپله ژوند په داسي یو ځای کي څه ګټه لري؟

وګوره!

زما استادان، پلرونه، زامن، نیکونه، ترونه، ورونه، خسران، اوښي ګان، لمسیان ټول خپلوان مي، هغوی چې ورته پاچاهي، عیش او خوشالي غواړم.

خو اوس ئې هر څه، خپل شته، خپل ژوند او هر څه پرېښي دي او یو د بل په وړاندي جګړې ته ولاړ دي.

کرشنا! زه د هغوی وژلو ته زړه نه شم ښه کولای. که څه هم هغوی زما په مرګ پسي راغلي وي.

د دې زمکي پر مخ پاچاهي نو څه ده؟ که د درې واړه جهانونو (زمکه، اسمان او د دواړو تر منځ هستي) پاچاهي هم راوبخښي، زه به داکار و نه کړم.

زما د تره (دریتراشترا) د زامنو په وژلو به موږ کومه خوشالي تر لاسه کړو؟

هغوی، که څه هم ملامت دي، که څه هم ګناهګار او وژونکي وي، خو د هغوی وژل به موږ په ګناهونو ولړي، موږ به تورمخي شو.

د خپلو خپلوانو وژل له موږ سره نه ښایي.

های کرشنا!

د خپلو خپلوانو له وژلو څخه نېکمرغي غوښتل، څه مانا لري؟

د دوی د عقل پر سترګو کومه پرده غوړېدلې ده؟

چې د خپلو خپلوانو په وړاندي خیانت او دوکه نه شي لیدلای؟

له دوستانو سره دښمني نه شي پېژندلای؟

خو موږ، اې کرشنا!

موږ خو په هرڅه پوهېږو، او د دې بدرنګه کار په بدۍ خبر یو

نو موږ ولې له دې جګړې څخه مخ و نه ګرځوو؟

ولې؟

ګورې به یې، چې د کورنۍ اړیکې ویجاړې شي

پخواني دودونه او اداب به رنګ شي.

د دې معنوي تباهي په پایله کې به

فساد او بدعملي پر دوی وزرونه خپاره کړي

ښځې به وویني چې څنګه له لارې وځي

او له بدکارۍ څخه به ناشولته نسل وزېږوي

او فساد به د دوی په کورنیو کې دومره خپور شي چې ټول به د دوزخ پر لورې وروخوځوي.

بیا به نو له خوارانو سره مرسته

د وریجو او اوبو خیراتونه هم ودرېږي.

د دې کورنیو مړي به سپک شي.

د دې کورنیو د بدکاره زامنو له لاسه به د دوی د نسل عزت تباه شي.

زاړه مذهبي دود دستور به له منځه ولاړ شي.

د کورنۍ غړي به، چې دغه دودونه پرېږدي، دوزخ ته به ننوځي.

ای (کرشنا!) دا هرڅه مو اوریدلي او لیدلي دي.

حیران یم، چې څنګه د پاچاهي او شتمنۍ له پاره ځان په ګناهونو کې لتاړوو

او د خپلوانو د وژلو له پاره مو ملا تړلې ده.

نو دا به راته ښه وي چې تر جګړې مخکې

پرته له دې چې خپل لاسونه د چا په وینو سره کړم او وسلې ته لاس وغځوم

دا به راته ښه وي، چې د (دریتراشترا) د زامنو په توره ووژل شم.

سنجایا:

هو! ارجن په ډېر خپګان، د جګړې د لیکو تر منځ داسې وویل:

خپله لیندۍ او غشي ئې لیرې وغوځول او په خپله بګۍ کې کښېناست.

(ګیتا، بهګود ګیتا pdf، ۶۳ – ۶۷)

دغه شاعرانه او عاطفي سرود موږ ته راښیي، چې په دې حماسي اسطوره کې انساني او عاطفي ارزښتونه په څومره مهارت ځای کړای شوي دي. ارجن د خپل تربور (دریودهن) له ټولو ناخوالو او بدیو سره سره جګړې ته زړه نه ښه کوي او نه غواړي وینې وبهوي. د مهابهاراتا تراژیدي همدلته ده چې تربور د تربور وینې بهوي او یوه کورنۍ، د یوه نیکه اولادونه باید یو بل ووژني. دا منظومه ښیي، چې (شر) او (خیر) ان په یوه وجود کې هم راټولیدلای شي، خو دا یو وجود باید د خیر او شر تر منځ جګړه وزغمي. د دوی محتوم برخلیک دا دئ، چې بالاخره باید خیر بریالی شي، د خیر بریالیتوب مهم دئ، که د خپلې کورنۍ د غړیو د وژلو په قیمت هم وي. مهابهارت ګڼ همداسي په زړه پوري او

شاعرانه انځورونه لري. د مهابهارت ادبي ارزښت خورا لوړ دئ. په دې اسطوره کې د ارباب الانواعو د پرېکړو، مرستو او دښمنیو په کشمکش کې د انساني ژوند سرګرداني ګورو، چې څنګه د اسماني پېښو په خاطر یو ورور بل ورور وژني او تربور د تربور پر مړي تېغ راکاږي. حرص او ځانغوښتنه د اهریمنانو وسلې دي، چې انسانان پرې یو بل وژني. مهابهاراتا د بشریت تر منځ د هري جګړې په وړاندې د پوښتني نخښه ږدي. د ارجن غمجنه پوښتنه، لا هم د تاریخ په پیچومو کې انګازې کوي، چې ولې باید وجنګیږو؟ او ولې باید ويني وبهوو؟ زرګونه کاله کېږي، چې د ارجن پوښتنه بېځوابه پاته ده او انسانان لاهم یو بل وژني.

ستر هندوستان ګڼي نوري اسطورې هم لري. د نامتو هندي ډرامه لیکونکي او شاعر کالیداس شهکار ډرامه (شاکونتالا) همداسي یوه ستره اسطوره ده، چې د مینې، وفادارۍ، له خاوند سره د مهرمني او له ماشوم سره د مور د اسماني پیوندونو تمثیل کوي.

د ټولو هندي اسطورو یادونه او پېژندنه به د دې بحث له حوصلې وتلې خبره وي، مور د همدې څو بېلګو په یادولو سره ورځو د هند ګاونډي او ډېره څله ګډ مدنیت ته او د اریایي اسطورو په پېژندنې سره د نړۍ د سترو اسطورو بېلګه یې شننه پسي غځوو.

نور بیا ...

***

د (۴۴) مخ پاته ...

**د بي بي شمسو د افغاني غیرت درسونه**

... د حالنامې متن په هندوستان کښې د یو زر و اته پینځوس او یو زر و نه شپېته هجري قمري (۱۰۵۸ - ۱۰۶۹ هـ ق) کلو تر منځ لیکل سوئ دئ. اصلي خطي نسخه یې پینځه سوه شپږ ویشت (۵۲۶) مخؤنه لري، چې د هندؤستان د اترپردېش ایالت، د علیګړ د اسلامي پوهنتون (علیګړ مُسلم یونیوَرسیټي) د ابوالکلام آزاد دکتابتون په سبحانه الله کلکسیون کښي په (۳۷۰ / ۹۲۰) لمبر خؤندي ده. د دې خطي نؤخسې نقلؤنه، په پنجاب یونیورسیټۍ او د پېښور په پښتو اکاډیمۍ کښي هم ساتل سوي دي. د افغانستان د علؤمؤ اکاډیمۍ اوسنی ګستنري نقل د علیګړ پوهنتون د خطي نؤخسې له مخي برابر سوئ دئ، چې په خواشینۍ سره له خورا ډېرؤ تېروتنؤ ډک دئ؛ او په اکاډیمیکه بڼه جدي او دقیق سمؤن ته اړتیا لري. په دې ورستیؤ وختو کښي چا زېرۍ وکئ، چې د جلال الدین اکبر له زماني څخه د اورنګزېب د پاچهۍ تر کلو پوري د پښتنو د عرفاني، ادبي، اجتماعي او سیاسي ژوندانه په اړه دا مستند او باوري کتاب، د افغانستان د اطلاعاتؤ او فرهنګ وزارت په اهتمام د چاپ په زېوَر ښکلی سوئ دئ. هیله لرم چي په دې چاپ کښي د پخواني ګستنري چاپ د پرېمانه ټایپي او متني تېروتنؤ و سموَلؤ ته ټینګ پام سوئ یې.

پای

*****


سردارولي پښتون زوی

# کوټه، د کندهار هېره فرهنګي حوزه

افغانستان چې لا د دښمنانو له خوا په بېلابېلو نومونو نه وو سکښتل سوی، خورا پراخه سیمه بلل کېده، د کندهار ختیځ شال او د هغه شاوخوا سیمې که څه هم د یرغلګرو ناروا وېش زموږ څخه لیرې کړې خو د اراکوزیا دې برخې له کندهار سره په هر غم و ښادي کښې ګډون کړی دئ، د دې ځای ټبرونو (پښتنو او بلوڅو) تل له افغانستان (په خاص بیا له کندهار) سره ګډې تاریخي، ژبني او قومي اړیکې پاللې دي. د کندهار ډېری منورین له همدغې سیمې سره اړه لري چې ان د پښتو پخوانۍ تذکره (پټه خزانه) هم په دې سیمې کښې تر لاسه سوې ده. خو متاسفانه چې زموږ او د هغې غاړې د اولسونو اړیکې بیخي پیکه سوي. د بېلګې په ډول که د کوټې پوهنتوني محصل وپوښتې چې په کندهار کښې پوهنتون سته؟ ښایي ډېر درته ووایي چې نه یم په خبر! همدغسې د کندهار محصل هم درواخله، ما د دغې تشې د ډکولو له پاره پخوا لا څو ټبري و ببرې سره پېودلې وې، چې په کندهار مجله کښې مې د خپرېدو وړ نه بللې، خو د کوټې په نړۍ وال پښتو سیمینار کښې د استاد معصوم هوتک دې خبري چې "کوټه د کندهاري ادب په پراخه اورشو کښې مهمه ونډه لري..." زړه راکړ چې اوس خو نو بیخي لار سیخ سیده سوه، نو دا دئ ستاسو په مخ کښې ئې ږدم، که مې کومه تېروتنه پکښې کوله نو د لارښووني حقدار مي وګڼئ.

پښتون زوی

---

لومړۍ برخه

## پېښلیک

پخوانی کندهار د اوسني کندهار په پرتله پنځه شپږ چنده لوی وو، چې لرغوني نوم ئې په یوناني آثارو کښې اراکوزیا کښل سوی دئ. اراکوزیا د سیمې په کچه تر ټولو لو ناوه وه چې غزني، پښین، ګریش، بولان دره، ښوراوک، سیستان او بست پکښې راتلل، بولان دره د افغانستان هغه ختیځه دروازه وه چې له هند څخه به تجارتي قافلې د کابل،

غزني، خراسان او بخارا له پاره پر تلې راتلې.

هغه آثار چې د کوټې د شمال لوېديځ په څو میلۍ کښې د ګل محمد په کلا کښې پیدا سول پر دې دلالت کوي چې د دې سیمې اوسېدونکي د خاورو په لوښو نه پوهېدل او ډېرو له چړو، هډوکو او تېرو څوکو لرونکو ډبرو څخه کار اخیسته. خلګ څاروي روزنکي کوچیان ول چې له ودانیو جوړولو سره نه ول بلد، خو په راوروسته وختونو کښې ئې خاورین لوښي ډېر نامتو ول چې لرغونپوهانو به د «ړوب ناوې لوښي» بلل او پر هغو به ځیني توري او هندسي انځورونه په تېره بیا بوک لرونکي غوایان او هوسۍ ډېر کښل کېدل.

د دغې سیمې په ډېرو لرغونو کورونو کښې لرغونپوهانو خورا ډېر هډوکي پیدا کړل چې د دوی پر ډېرو غوښو خوړلو دلالت کوي. همدارنګه د غلې د میده کولو له پاره اونګونه او د اوسپیني اوزارونه لیدل سوي دي. پر ځینو خاورینو لوښو (T.A.W.V) ته ورته شکلونه ستة چې د هغو په څېر بل ځای نه دي لیدل سوي. څکه نو لرغونپوهان د هغو په پېژندلو کښې پټه خوله دي، د دغه لرغوني مدنیت عمر شاو خوا شپږ زره کاله اټکل سوی دئ[1].

کله چې په ۳۳۰ (ق م) کښې ستر سکندر افغانستان د مقدوني امپراتورۍ برخه وګرځوله، نو له همدې ځایه هند ته ولاړی، وای کله چې سکندر راتلی نو د بولان پر دره راتېر سو او له بولان سره نژدې (اوسنی کوټه) کښې ئې د ځان هوسایني له امله خورا ډېر وخت تېر کړ، چې بیا له همدې ځایه د هلمند رود پر غاړه تر پارسه پوري ولاړ، د خیابان سکندر نوم له همدې امله د کوټې پر لو لار اېښوول سوی دئ. یاده دې وي چې بولان او شاوخوا سیمه تر سکندر دمخه د اېراني واکمنانو په لاس کښې وه. د وروستیو تر لاسه سوو مجسمو له څېړني وروسته مالومېږي چې له دوهمې عیسوي پېړۍ څخه وروسته شال[2] او پښین یو مخ په باختري دولت پوري تړلي ول.

د اویستا په نوشتو کښې د پښین[3] نوم په «پښنیان» کښل سوی دئ، چې وروسته بیا «ویرا» هم بلل سوی دئ چې وای دلته یو پراخ دښت وو[4]، خو د شال(کوټې) بنسټ لومړي ځل په شپږمه پېړۍ کښې د ساسانیانو (۶۵۱-۲۲۵ع) په دوره کښې هغه وخت کښېښوول سو چې دلته لا اسلام نه وو رارسېدلی[5]. په همدغه وخت کښې د بولان او سیوۍ سیمو ته سیوستان نوم هم اخیستل سوی دئ چې وای دلته لرغوني فیوډالي ریاست وو. په ۶۳۰ع کال چې عربي لښکرو د عبدالرحمان بن سمره په لارښوونه د جنوبي

---

[1] پوهاند حبیبي، د افغانستان لنډ تاریخ «د عبدالودود کرزي ژباړه» (کوټه: ۱۳۷۸ل - ۴مخ).

[2] شال د پښتنو لرغونې سیمه ده چې اوسنۍ کوټه څني مراد ده، له همدې امله کوټې ته شال کوټ هم ویل کېږي، څرنګه چې شال نارینه نوم دئ نو ګومان کېږي چې شال به د دې سیمې اوسېدونکی وو، څکه چې تر اوسه پوري د شال درې او شال تنګي په نامه ځایونه ستة، په دې اړه به په راتلونکې برخه کې ورغېږو.

[3] د پښین نوم په ناسم ډول په ډېرو باوري متونو کې (پښنګ/پوشنج) کښل سوی دئ او د هرات له لوېدیځ (پوشنج - ننني زنده جان) سره خلط سوی دئ، چې اصل ئې پښین دئ چې د کوړک غره او کوټې په میان کې راځي.

[4] دکوټې او پښین جغرافیایي قاموس «ګزیټر» (کوټه: ۱۹۰۵ع؛ ۲۹مخ).

[5] کامران اعظم، تاریخ کوئټه (لاهور: اداره تخلیقات ۲۰۱۲ع).

افغانستان تر نیولو وروسته ختیځ افغانستان ته بل لښکر ولېږه، نو د کابل او غزني تر نیولو وروسته ئې یو پلټنې د کوټي نیولو ته هم وګوماره، چې هغه لښکر تر «قنده بیل» (اوسنی بولان) پوري فاتح ولاړ، تر ۶۵۶ع کال پوري عبدالرحمان د همدې سیمي والي وو، خو څه وخت وروسته خورا لوی بغاوت وسو چې د حارث بن مره لخوا په توندی سره وټکول سو، چې پخپله حارث هم خپل ژوند د لاسه پکښې ورکړ.

د امیر سبکتګین او محمود غزنوي په دورو کښې هر یوه پر دغه سیمه تر خضدار پوري پراخ یرغلونه وکړل، چې د غزنوي تېر تر وروستي باچا پوري هر یوه په خپل واک کښې وساتل، چې وروسته بیا سلجوقي واکمن دغه سیمه اشغال کړه او د کرمان په ولایت پوري ئې غوټه کړه.

د دیارلسمي پېړۍ په پیل کښې برښور تر پښین او کوټي ارزښتناک معلومېږي او د کندهار په سلطنت پوري تړلی دئ. طبقات ناصري کاږي چې دغه سیمه د خیوا د واکمن (خوازم شاه سلطان محمد) د واکمنۍ برخه وه چې په ملک اختیارالدین پوري ئې اړه درلوده. کله چې مغول د سېلاب په ډول راپورته سول، نو د هرات ملک خان اړ سو چې سیستان ته د ګرم سېل له لاري وتښتي. وای په دې وخت کښې د برښور واکمن ریاض الملک نومېدئ چې د کرک؟ (د غلجو یو ښاخ) تېر سره په جګړه اخته وو، په همدې وخت کښې جلاالدین خورازم شاه د سند پر لوري له همدغه برښوره (اوسني پښین) تېر سو چې د کندهار ټولي سیمي ئې تر لاسه کړې.

په څوارلسمه پېړۍ کښې د هرات کرت ملکانو پر کندهار حکمراني کوله، کله چې تېموریانو خراسان تر لاسه کړی[6] نو امیر خپل مشر زوی میرانشاه ته خراسان او امیر سیقل ته کندهار وسپاره (۱۳۸۳ع/-۷۹۱ل)[7] په دې وخت کښې قلات، پښین، لورالایي، مستنګ، شال او ږوب د کندهار ختیځي برخي وې. په ۱۳۹۸ع/۸۰۰ل کال کښې امیر تېمور خپل لمسی پیرمحمد[8] د کابل، غزني او کندهار حکمران کړ او هغه تر اباسین پوري د کوه سلیمان افغانان سره وکوټل[9] کله چې د تېموري دورې په پای کښې شاهرخ په هرات کښې د خپل پلار ځایناستی سو، په کندهار کښې د امیر ترمان پیرمحمد بن امیر کتلو (پیرک) او مودود ګرمسیري تر منځ جنګ وموښت، خو دواړه شاهرخ هرات ته وغوښتل، د کندهار مشري ئې پیرک ته وسپارله سوه او مودود ئې په دربار کښې وګوماري. تر دې جګړې وروسته د کندهار د پښین ناوې شاوخوا ترینانو په پراخ بغاوت لاس پوري کړ او له شاهرخ څخه ئې پښین ونیوه چې تر اوسه د کوټي د پښین ناوه د همدغو ترینانو په لاس کښې ده. ویل کېږي همدغه محال ترینانو

---

[6] " امیر تېمور فراه، اسفزار (اوسنی شینډنډ) او سیستان ونیول، بست او کندهار ئې وران کړل او د شمالي لوېدیځ افغانستان باچا سو "پوهاند عبدالحی حبیبي، د افغانستان تاریخي پېښلیک (کابل: د بهقي د کتاب خپرولو موسسه، ۱۳۵۳ل-۸۰مخ).

[7] هماغه، ۸۱مخ.

[8] دلته پیرمحمد نامي دوه دي، دغه پیرمحمد د جهانګیر زوی او تېمور لمسی دئ، بل میرزا ملک پیرمحمد بن غیاث الدین، پیرعلي نومېدی چې په همدغه وخت (۱۳۸۸ع) کال کي د میرزا میرانشاه بن امیر تیمور په حکم په هرات کي ووژل سو. د پیرعلي کهول له تېمور سره ډېر جنګونه کړیدي.

[9] هماغه، ۸۲مخ.

خپل اصلي وطن (کسې غر) پرېښوول او د کندهار ختیځې څنډو پښین ته راغلل.
د یو محلي روایت له مخې علي بن مامون ملکیار د ترین قبیلې سردار په سیمه کښې د زمندو قبیلې ته د کاکړو او سیدانو په مرسته کلکه ماته ورکړه، همدې نمونې په اولینه پلا په پښین کښې د ترین واکمنۍ خښته کښېښوله، د پښین د اشغالولو له پاره د جنګ ډګر منزکي ته ورځرمه وو چې نابوده جنګونه ورباندې وسول چې پایځوړ ئې د زمندو ماته او د ملکیار والیتوب سو، په جنګ کښې برخه لرونکې قبیلو د پښین سیمه ووېشله، د همدې وېش له رویه تر اوس مهاله بېلې-بېلې قبیلې ژوند کوي.[۱۰] انګرېز پلوه لیکوال «جمیعت رایې» په خپل کتاب (د کوټې او پښین جغرافوي قاموس) کښې کاږي:
په څوارلسمه پېړۍ کښې ملکیار په بربښور او نګانده کښې اوسېده چې د کاکړو او سیدانو په مرسته ئې پښین له زمندو څخه ونیوه، پر کم ځای چې دوی و زمندو ته ماته ورکړې ده هغه ځای تر اوسه پوري په جنګ زی (د جنګ ځای) مشهور دئ، دغه ځای و منزکي ته نژدې د پښین د علي زیو په سرکل کښې راځي[۱۱] زمند په اصل کښې د ارغسان د غوړي ناوې په لاندې سیمو کښې په ۱۶۰۰ع شاوخوا کښې آباد ول، کله چې دوی د پښین له ناوې څخه وشړل سول، نو په لوی شمېر کښې ملتان ته ولاړل، خو د دوی د سر قبېله (خوشکي/خوش ګري) غزني، کابل او هندوکش ته ولاړل.[۱۲]
کله چې سلطان حسین میرزا واک تر لاسه کړ، نو د شال، پښین او سیوۍ سیمې ئې د شاه بېګ ارغوان او د هغه زوی امیر شجاع الدین آرکون ته وسپارلې، چې ډېر ژر ئې د دغو سیمو د اوسېدونکو زړونو تر لاسه کړل او د خپل پلار د وصیت سره سم ئې دوهم وار د هغه د لاسه وتلې سیمې بیرته تر لاسه کړې، د ده د ښه والي بل لامل ښایي دا وي چې له کابله د ظهیرالدین بابر د یرغل خطره وه، چې د همدې خطرې له امله و نه توانېدی چې سېوۍ له مغل واکمن عبدالعلي او میر فصیل کوک څخه تر لاسه کړي، خو بابر پر زور سو او په ۱۵۲۲ع کال کښې کندهار له شاه بېګ څخه ونیو او خپل زوی شهزاده کامران ئې پر ځای وګماره. په ۱۵۲۴ع کال کښې د کامران بل ورور شهزاده همایون په هندوستان کښې تر ماتې وروسته اوسنۍ کوټې ته راغلی، له څه وخت تېرولو وروسته ئې خپل ورور میرزا عسکري ته چې په دې وخت کښې د کندهار حاکم وو خپل کشر زوی «اکبر» د مرستیال په ډول ورپرېښووی او پخپله د نوشکي پر لار ګرمسیر او هرات ته ولاړی.
کله په ۱۵۳۰ع کال کښې بابر په اګره کښې مړ سو، نو د ډهلي سلطنت د همایون په برخه سو، کابل، غزنی او د کندهار سیمې بیا د کامران په برخه سوې، خو د بابر د زامنو په کړکېچ کښې به دا سیمه کله د مغلو او کله د اېراني صفویانو تر واک لاندې راتله چې په ۱۵۴۰ع کال د پښتون شېرشاه سوري له لوري همایون سخته ماته وخوړه او د بولان له لارې اېران ته ولاړ، خو پنځه کاله وروسته ئې د شاه

[۱۰] عصمت زهیر، د پښین لنډ تاریخ (کوټه: پښتو ادبي غورځنګ، ۲۰۰۴ع/۱۳۸۳ل-۴ مخ).
[۱۱] The Gazetteer of Baluchistan Quetta Pishin(English) p no ٦٨
[۱۲] The Races of Afghanistan ,p ١٩,Bymager.H,W Bellew

ایران طهماسب په مرسته کندهار له میرزا عسکري څخه تر شپږو میاشتو کلابندۍ وروسته بیرته ونیو[۱۳] چې د کندهار او شال حاکم ئې شامحمد وټاکی[۱۴]. همدا رنګه ئې شال او مستونګ لونګ خان (د بلوڅو مشر) سیوۍ او دوکۍ[۱۵] و میرعلي (د پښتنو مشر) ته ورکول سوې.

تر همایون وروسته ئې زوی شهنشاه اکبر د خپل پلار د وصیت سره سم کندهار او شال د ایراني سلطنت برخه وګرځوله[۱۶]، خو په ۱۵۹۴ع/۱۰۰۳ل کال کښي بیرته کندهار او بلوڅستان د ډیلي د اکبر باچا په پراخ سلطنت پوري غوټه سو او شاه بېګ خان کابلي ئې پر مقرر کړ، خو د شال کاکړو ئې په وړاندي ښورښت وکړ مګر وټکول سول[۱۷]. په دې وخت کښي د کندهار په ختیځ کښي څو ځایه په خورا ټینګو کلاوو یاد سوي دي لکه: د دوکۍ کلا چې د کاکړو او ترینو افغانانو په واک کښي وه چې له اومو خښتو جوړه وه، د پښین کلا چې له اومو خښتو جوړه وه او واک ئې د عبدالقادر د زوی محمدحسن په لاس کښي وو، د شال کلا چې د افغان کاسیانو او بلوڅو په واک کښي وه، د مستنګ کلا چې د بلوڅو او کاسیانو په واک کښي وه[۱۸].

شال ته د روښانیانو د راتګ په اړه استاد معصوم هوتک کاږي:

"بایزید روښان چې د ۹۶۱ هـ ق = ۱۵۵۳ع کال په شاوخوا کښي تر پنځه کاله څیلې تېرولو وروسته له کوره دباندي راووت او د خپلو عقایدو د تبلیغ او ترویج له پاره ئې شاوخوا سیمو ته د خپلو خلیفه ګانو د لېږلو تکل وکړ، خلیفه مودود ترین ئې کندهار ته راواستاوه. خلیفه مودود کاسیانو ته راغی. د کاسیانو ټاټوبی (اوسنۍ کوټه) کندهار وو. دلته ئې واردواره د کاسیانو یو ملک چې "بابو" نومېدی، خپلي لاري ته راوباله. بابو باسواده سړی وو خلیفه مودود به په کندهار یو کاسیانو کښي زیاتره د "بلال" نومي په کور کښي اوسېدی. بلال د خواجه عمران کندهاري روښاني خدمتګار وو او د بایزید روښان او د هغه د کورنۍ په خدمت کښي به په شپه و ورځ

[۱۳]پوهاند عبدالحی حبیبي، د افغانستان تاریخي پېښلیک (کابل: د بیهقي د کتاب خپرولو موسسه، ۱۳۵۳ل-۱۲۴مخ).

[۱۴] شامحمد، د کلات توخی وو.

[۱۵]دوکۍ له لورلایي څخه ۱۲ میله جنوب ته واقع ده. اورنګزېب چې دوهمه پلا پر کندهار برید کاوه، له ملتانه د دوکۍ پر لار ولاړ، دی خپل پلار ته کاږي: "دوکۍ تر چټیالي ډېره اباده ده چې د ترینو پښتنو ۵۰۰ کوره پکښي مېشته دي. تر کلي دباندي یوه اومه کلا او باغ هم سته". ابوالفضل په آئین اکبري کي دوکۍ د لوی کندهار ختیځه کلا ښوولې ده، تر دغي کلا وروسته د ملتان سیمه پیلېږي، علامه رشاد، جغرافیایي یاداښتونه (کندهار: علامه رشاد اکاډیمي، ۲۰۱۱ع/۱۳۸۹ل -۲۱۵مخ).

[۱۶]علامه عبدالحي حبیبي، د محمد هوتک د «پټې خزانې» په لمنلیکونو (۱۱۱) او خپل بل اثر «تاریخ افغانستان در عصر گورگانی هند» (۱۸۰) کي، د مغولي دربار د مشهور مؤرخ (ابوالفضل علامي) د «آیین اکبري» په استناد باور لري، چې «شال» یا «شالکوټ»، د اکبري دورې په تشکیلاتو کي، د کندهار د ښار له ختیزو مربوطاتو څخه ګڼل کېده.

[۱۷]پوهاند عبدالحی حبیبي، د افغانستان تاریخي پېښلیک (کابل: د بیهقي د کتاب خپرولو موسسه، ۱۳۵۳ل-۱۳۴مخ).

[۱۸]پوهاند عبدالحی حبیبي، تاریخ افغانستان در عصر گورگانیان هند (کندهار: علامه رشاد خپرندویه ټولنه، ۲۰۱۰ع/۱۳۸۹ل-۲۰۲مخ).

ولاړ وو. د بلال نوم "مانک" وو خو خلیفه مودود د بلال نوم پر کښېښود او "بلال ثانی" به ئې باله. بلال د "هلال" په نامه یو زوی درلود، چې د حالنامې په قول د حال و مقام څښتن وو او لیکلي آثار ئې هم درلودل (حالنامه ـ گستتنر چاپ ـ ۳۷۲ مخ، کابل) په روښاني عصر کښې د دغو کندهاریو کاسیانو مشر سکندرخان نومېدی او په شال کښې اوسېدی. دی د روښان بایزید له ډېرو صادقو او زړه ورو مریدانو څخه وو. حالنامه ئې د زړه ورتیا کیسې لیکي (۳۶۳ مخ). دغه سکندرخان خپله لور تر زېږېدو د مخه د پیر له پاره نذر کړې وه چې وروسته ئې د روښان پیر لمسي د جلال الدین زوی رشیدخان ته ورکړې وه. دا نجلۍ د سکندر خان ورور سنجر نومي هندوستان ته بوتله او هورې ئې رشیدخان ته کښېنوله [د رشیدخان اصلي نوم الهداد وو. دا لقب مغولي واکمن جهانگیر ورکړی وو. رشید خان په ۱۰۵۸ هـ ق کښې مړ او د شمالي هندوستان په رشیداباد کښې ښخ دئ] دا مېرمن د خانصاحب رشیدخان په کورنۍ کښې د ډېر عزت څښتنه وه. نوم ئې "فیروزبخته" خو لقب ئې "قندهاری محل" وو.

د روښانیانو په مریدانو او مخلصانو کښې په برېڅو کښې ئې "علي خلیفه" نومی، په شینوارو کندهاریو کښې ئې "خلو" نومی او خلیفه عبدالکریم (د حالنامې په روایت دا سړی هم په لیک لوست پوه او شاعر وو) او پخپله علي محمد مخلص کندهاری، په ساپیو کندهاریانو کښې ئې "خانا" نومی او یو شمېر نور خپلي لاري ته راوبلل. دوی ټول د همدې سیمې اوسېدونکي ول او روښانیو ورته د کندهاریانو په سترگه کتل. حالنامه چې د روښان پیر د کندهاریو مریدانو نومونه اخلي، د زړه ورتیا صفت ئې کوي او زیاتره ورسره لیکي چې "خواننده" وو، په لیک لوست پوهېدی. له دې څخه ښکاري، چې په هغه وخت کښې پر دغه سیمه باندي د سواد او لیک لوست رڼا خپره وه"[19]

لکه د مخه چې وویل سوه چې د زمندو تر ماتي وروسته ملکیار د پښین حاکم سو، نو ئې خپل زوی بټی د سند راوړلو د پاره د مغلو باچا ته ولېږه، خو بټې د پلار پر ځای د ځان سند راوړ، چې ډېر ژر ئې ملکیار مات او پخپله د پښین حاکم سو، تر بټې وروسته ئې زوی خواجه خضر، تر ده وروسته ئې زوی کلاخان او تر کلاخان وروسته ئې ورور شهرام خان پر ځای وټاکل سو[20] تر شهرام وروسته د حسن خان مشر زوی شېرخان ترین د پښین ملي مشر وټاکل سو. د شېرخان په اړه علامه حبیبي کاږي:

"حسن خان او د ده زوی شېرخان د پښین له غټو مشرانو څخه دي، شېرخان په ۱۶۲۱ع کښې د پښین حاکم وو، په ۱۶۲۹ع کښې ئې د کندهار او پښین تر میان لار ونیوله چې له همدې کبله ئې د کندهار حاکم علي مردان[21] مخالفت پیل کړ، په ۱۶۳۱ع کال کښې شېر خان له پښین څخه پر سیوۍ حمله وکړه خو چې علي مردان د ده په تګ خبر سو هغه پر پښین حمله وکړه او شېرخان د ملتان

---

[19] معصوم هوتک، د کوټې له سیمیناره د حبو اخندزاده تر مزاره «یونلیک» (لر او بر برېښنایي کتابتون، ۲۰۱۵ - ۷مخ).

[20] خیر محمد عارف، ترین او ترینو (کوټه: پښتو اکاډمي، ۲۰۱۱ع).

[21] خوشال بابا د علي مردان په اړه په ارمغان کي کاږي: هندوستان به گوره څه سي ستا له فعله * خدای دي ورک کړه رافضي علي مردانه!

له لاري د شاهجهان دربار ته پناه یوړه"[22].

دوی د ایران د صفوي او د ډيلي د تیموري واکمنانو تر منځ خپلواک اوسېدل، که څه هم شېرخان ترین له پلار سره د کندهار د پخواني صوبدار (شاه بېگ خان) له لاسه پارس ته تبنتېدلي وو، ځکه چي هغه دوی دوه د خان سیال ګڼل، خو کله چي په ۱۰۸۳ل کښي شاه عباس مړ او زوی شاه صفي ئې پر ځای کښېناست، نو شېر خان پر خپل کام ږغ وکړ چي باید نور د پردو له واکه ځان خلاص کړو، لومړی حمله ئې پر سیوی وکړه مګر علي مردان له دې ځایه ګټه واخیسته او له څلور زرو سپرو سره ئې د پښین پر لو کلا حمله وکړه چي د شېرخان د حکومت مرکز وو، په حمله کښي ئې ټوله غله او د ده عیال له ځان سره ضبط کړل، کله چي دی خبر سو له علي مردان څخه ئې ماته وخوړله او د دوکی پر لار هند ته ولاړ، چي د ملتان د حاکم احمدبېګ خان په ضمانت و بخښل سو، او په پنجاب کښي ئې څه مځکي بخشش هم ورکړې. وروسته ئې نور کهول همدلته استوګن سول چي اوستری سړی ئې د پاکستان پخواني اولسمشر ایوب خان وو، چي اوس ئې زوی ګوهرایوب پر ځای ناست دئ، یاده دي وي چي د دوی اصل ځای پښین ته نژدې بتې زی دئ.

د فارسي نامتو اثر «ذخیرة الخوانین[23]» کاږي:

"شېرخان ترین ساکن پشنگ که مابین قندهار و بیکر واقع بود، قافله سوداگران که بآن راه به عراق مي رفت مشار الیه موافق خواهش خود از سوداگران مترد دین زرها می گرفت بلکه قافله زبون که زان راه می رفت تاراج هم می کرد. مرد صاحب الوس جمیعت افاغنه کثیر همراه داشت درمیان دو بادشاه از هندو و عراق بود، پروانی می نه داشت، چون بخدمت شاه والا قدر شاه عباس صفوی (رح) رفت نسبت خود را درست کرده آمد بود و خود را درسلک ملازمان آن درگاه منسلک ساخته گاهی گاهی پیشکش می گذارنید شاه صفی که برمسند موروثی نشت و شیرخان را به طلب حضور کرد.

مشاراله رفتن خود را به عذر و بهانه معطل می داشت تا آنکه دارائی ایران به گنج علی خان (په اصل کښي علي مردان، پښتون زوی) حاکم قندهار مکرر نوشت که قابو دیده کار اورا بآخر رساند... به منصب دوهزاری ذات، و پانصد سوارعزت افتخار یافت...".

ویل کېږي چي کله شېرخان د هند په دربار کښي د ډېر باور وړ سو نو شاه صفي ته خپلو مخبرانو حال ورکړ چي شېرخان د پښي کاکړانو په مرسته د کندهار د نیولو تابیا نیولې ده. نو شاه صفي شېرخان ته لیک ولېږه چي که له هنده راستون سي بیرته به پر پخواني وظیفه وګومارل سي، خو لیک د شاه جهان ګوتو ته ورسېد نو له شېرخان څخه ئې ټول امتیازات واخیستل، په دربار کښي ئې حاضري بنده سوه، کله چي شاه جهان په دوولسم سفر پنجاب ته تله، نو شېرخان ئې په اکبر اباد کښي بندي کړ، درې کاله دی په بند کښي وو چي هلته ئې د دُق د ناروغی له امله پور پرې کړ.

د لومړی برخي پای

[22] پوهاند عبدالحی حبیبي، د افغانستان تاریخي پېښلیک (کابل: د بیهقي د کتاب خپرولو موسسه، ۱۳۵۳ل-۱۴۰-۱۳۸مخونه).

[23] شېخ فرید بکهری، ذخیرة الخوانین (دریم ټوک) تهران: ۱۹۶۵ع.

# هنر او ادب

چلوونکی: پردېس کندهاري

عبدالهادي ملا

## غزل

اور د میني سوی یم، ګران تر زرو سکور زما
زه د حسن تور یمه، سپین تر ایمان تور زما

پراخ ځیګر آسمان لرم، غر شانتي ارمان لرم
عقله! ستا کوټې تنګي، لوی تر کلي کور زما
ننوزم اروا ته خپل، هک پک سم مانا ته خپل
حسن سي خودکش تقدیر، ما وژني په زور زما
زه چي ورک له ځانه سم، دښت کي پټ له خانه سم
هر بوټی مي پل څاري، لاس پر لاس انځور زما
ځان چي کړي ما پیدا، لمس کړمه د ګل خندا
ولمبوي توره شپه، سپینه پرخه مور زما
تور د استبداد کاڼي، دا د ذوق جلاد کاڼي
اوري مي پر سره غزل، مات کړي د سر شور زما

سپین قصر کي تور امام، دا د ظلم او زور امام
لولي د نفرت آیات، ما وهي په ورور زما
۱۱/۰۲/۲۰۱۶

عبدالهادي ملا

## غزل

غر د حسن نړېدلی، د زړه کاڼي ئې راوړمه
د جنون د دښت لمن کي، د عشق ځلي جوړومه

دنیا وایي: نړوه یې! وفا وایي: جوړوه یې!
د کلنګ بېلچې مزدور یم، د شهی ولور ګټمه
لمره! خپل زرین انډې دي، رسوه "قارون کلا " ته
زه او شپه پټي د ستورو، څو خالونه ټولومه
شېخه! تار د تسپو اوم دئ، ځه لمن د میني نیسه
د خدای ږغ وایي: "مین یم، زه مین را رسومه"
د سزا جزا خبري، د وسواس توري لښکري
د ګل مخ جانان ته سوی، زه په دې لاره ورځمه
د سحرسترګي! لاس را کړه، زه د ګل جانان سینګار ته
د سنبل د زلفو ول کي، د شبنم څاڅکي اوبدمه

د سبا برخه نن غواړم، د آدم تلواري زوی یم
ته وابنکي د کوثو راکړه، زه جنت را بارومه
۲۰/۰۲/۲۰۱۶

اجمل ښکلی/کابل

## غزل

ما ته څېره مي راته روغه ښيي
په ایینې پوري خندا راځي
هغه ارزو چي ما خپل ژوند ګڼله
اوس په هغې پوري خندا راځي
لمر چي راوخوت، واوره ويلي شوله
ستا په وعدې پوري خندا راځي
دوه کرکټره بس: سراب او دېوال
خپلي کيسې پوري خندا راځي
ښه ده، چي کښېناسته غبار و د لار
خپلي جذبې پوري خندا راځي
ما ته په تا پسي ژړا نه راځي
په غبارې پوري خندا راځي
دا زمانه، دا ساده توب اجمله
ستا په څېرې پوري خندا راځي

مقتصد ستړی

## غزل

له خپله درده خپل ارمان ته چيغي
تل له انسانه کړم انسان ته چيغي
خالقه تا ته مي توبه له نړۍ
تا ته زاري کوم اسمان ته چيغي
وحشت چي چا خپور کړی ښه رامالوم
له خپله ځانه وهم ځان ته چيغي
د تنهایي تاريکی نيم وخورم
په نيم وجود عابد ایمان ته چيغي
ښه دا چي چيغي وهم ښه ښکارېږم
ښه دا چي زه وهم درمان ته چيغي
مقتصد ستړی يم بس نوري بس دي
بس نوري نه وهم جانان ته چيغي

بارکوال مياخېل/کوټه

## غزل

له جنګه ليري ئې ساتئ، له تورو زغرو پرهېز
ژوند به رنځور سي که مو ورکړ له سندرو پرهېز
ما چي له کله ماته کړې ده روژه د چوپتيا
غاصب له هغه وخته کړی له خبرو پرهېز
هجر مي وچه کړه د ميني په وجود کي وينه
ظالم راکړی وو د شونډو له شکرو پرهېز

انسانه! هله دي جنت انسانستان جوړوه
چي دي له وينو وي نيولی زورورو پرهېز

کوټه بختونه ئې د عقل په لمبو و سېځل
شراب د حسن ته ئې مات کړ بختورو پرهېز
تورو لېمو ته مي ئې کښته کړه جنډه د زړګي
له ځانوژونکي بريده وکړ ترهګرو پرهېز
مانې به سر ته کړو د روغي بارکواله! لوګی
درځه چي مات کړو د دې ډېرو مرورو پرهېز

خدايه
نور خو دردونه د هغو کړې
چي دردونه راکوي
يوارخو پوه سي
درد ورکول څومره اسانه
زغمل ئې څومره سخت وي
(درخانۍ)

صدیق الله مین

## غزل

تاپوه کړمه یاره زه اوس زه سومه
نه کومه مینه ښخي ښه سومه
ژوند چي په ما هرڅه هرڅه ولیدل
کاڼي غوندي کلک ومه اوبه سومه
ومي واهه ډېر فکر له خان سره
سیال دي نه وم مل دي خکه نه سومه
تاپه هیڅ کي نه شمېرلم هیڅ نه وم
ستاپه کار چي درغلم یو څه سومه
تا چي راته بیا هغسي وکتل
زه هم بدل سوی وم هغه سومه
زړه رانه مینه! څنګه غواړې ته؟
ماخو زړه بایللی دئ بې زړه سومه

احمد فاني

## غزل

بند د خپل ضمیر په تار دي ډېر وګړي
لکه عکس تل په دار دي ډېر وګړي
په وجود کي د یوه نهال لوېږي
ځیني ګل او ځیني خار دي ډېر وګړي
د روڼا مینان مرګ په روڼا غواړي
کهکشان غوندي کتار دي ډېر وګړي
موږ راورسېدو ستا د مخ دیدن ته
تر موږ وروسته هم پر لار دي ډېر وګړي
د صحرا غوندي احمد فاني آرام دئ
لکه ښار څه ناکرار دي ډېر وګړي

حبیب الله قلم مل

## غزل

زما هڅه او ستا کوښښ زیارخواري غواړي
موږ هوسا، وطن ستړي لږه هوسایي غواړي
ښار زرغون سمسوره ساتي درې واړه که ولري
لږ اوبه او یو مالیار څو داني نیالګي غواړي
یون یوازي نه کېږي یو، یووالي مخته ځي
کار له همکارۍ زېږي هر څه همکاري غواړي
توان لري هستي لري بخت وو وخت نېستي لري
وخته بختور به سي څو د کار سړي غواړي
پروت په تاریکیو کي دي له څو لسیزو څه
لوي د پوهي څرک غواړي ډېره رڼايي غواړي
ته که دا امید لرې سم بې راته دوی کاندي
کله قلم مله جوړ دا وطن پردي غواړي

ډاکټر بشیراحمد تائي

## شهید آشنا ته

لمر د نن ورځي چي ټول په خپل انوار ځي
د وفا له غېږي مست نازنین یار ځي
طراوت د هر ګل بوټي په چمن کي
ولي تري د نرګس سترګي سهار ځي
یو یو یار دي د لاله غوندي زړه داغ سو
څوک د غم په سیند لاهو دي ناقرار ځي
فانوس بله کړه شعله له آتشیه
چي د مرګ خبر دئ لمر وخت د سهار ځي
اشنا نن دي هر اشنا په افسون وینم
د اشنا تن چي ئې ټول پرهار پرهار ځي
شهادت دي اور د شمع په شان بل کړ
نن سهار د بڼ بلبلي ټول چیغار ځي
نن په موج دي د ځوانۍ ګرېوان پاره سو
د دښمن د جفا تېغ به دي خونخوار ځي
آرامي دي تل په بڼ د جنت غواړو
و دربار ته د څښتن دعا هزار ځي

یتیمه سلګۍ

# غزل

غزل "جانانه" ښ مې څه بدله اراده کړېده
نوره دې مینه نه کوم دا مې وعده کړېده
هاغه خوبونه تعبیرونه ئې غلط وختل
له اوښکو ډکو سترګو څومره شبګیره کړېده
د کلي پېغلې ستا د نه راتګ پېغور راکوي
نامرده څومره مې دا ستاپه نوم سجده کړېده
بیا به و نه کړم انتظار د درواغجن مازیګر
ما او زړه دواړو ښ همدغه فیصله کړېده
دکلي خان په زرو مست دئ زړونه نه پېژني
لیونۍ تا هسې د کال مړي ته شپه کړېده
حسن پرست له ښاره باسي د یزید لښکرې
زموږ د کلي پر ګودر ئې ښ حمله کړېده

احمد فاني

## غزل

چې وي شمله پاس پر کله ولاړه
لکه پر غره چې وي جنډه ولاړه
زموږ توپک بیرته پر موږ وو راسته
زموږ و مخ ته وه آینه ولاړه
د آزادۍ روح ده پکښې چې رپې
کنه جنډه خو وي ساده ولاړه
دغه هویت په تذکره کې غواړو
چې افغان نوم ته وي شمله ولاړه
احمد فاني ساعت ولاړ وو خو موږ
چې ویل ده دا زمانه ولاړه

نذیر احمد تائي

## د شهید عبداللطیف اشنا

خبر نه وم چې به هسې په تلوار ځې
د وفا له غېږې مست نازنین یار راځې

په مرګې دې هسې داغ پر زړه مېلمه سوم
دا مېلمه به تل کوربه سره تیار ځې

چا لاله غوندې تور داغ پر سینه یووړ
څوک مجنون غوندې صحرا ته په کوکار ځې
څوک د شمعې په شان سوځې خاموشي کې
څوک نرګس په څېر لندې سترګې کنار ځې
څوک کباب غوندې سره اور باندې کړېږي
څوک په ګرمو اوښکو لوند ګرېوان رخسار ځې
څوک غوټۍ غوندې سینه پاره پاره سو
څوک د غم په سیند لاهو دئ چې پر لار ځې
څو په ورځ د جنازې څوک فاتحې ته
څوک دې لیرې په خبر د مرګ چیغار ځې
ګران وطن دې خوشبویي له خدمت اخلې
سول نافه مشک چې دوکان ته د عطار ځې
کوږ فلکه په مطلب دې نه پوهېږم
د خزان په باد دې زموږ غوټۍ بهار ځې

پر ګلشن باندې مو هسې ناورین جوړ دئ
شین سهار د بڼ بلبلې په کوکار ځې

روح دې ښاد ځای دې جنت اشنا اوسه
و څښتن ته د تائي دوعا بار بار ځې



لیکوال: عبدالکریم عامر/لورالایي

# د "تفسیر افغاني" د لومړي ټوک قلمي نسخه

د "تفسیر افغاني" په نوم زموږ په ادبیاتو کې یو تفسیر یاد سوی دئ. چې دوهم او دریم ټوک ئې د افغانستان په ملي آرشیف کې خوندي دي[۱].

د دې تفسیر لیکونکی عصام الدین احمد زوی د عزیز الله زوی د عصمت الله چغتي دئ. چې غالباً د کاتب له یوې لیکنې ځخه، په ۱۲۷۹ ق کې ئې بشپړ کړی دئ. لکه:

"هذا تصنیف مولایي اخونزاده ننگرهاری خصوص در موضع سفید کوه خصوص در موضع کدیخیل تفسیر افغانی کرده، اکبری شفقت بر افغانان، سنه ۱۲۷۹ یکهزار دو صد و هفتاد و نه که فراغ یافت"[۲].

استاد هیوادمل د دې لیکني په اړه وایي: "د کاتب له لوړي لیکني ښکاري چې د تفسیر افغاني، مصنف مولایی (مولوي) اخنزاده د ننگرهار د سپین غره په کدیخیلو کې په ۱۲۷۹ هـق کال بشپړ کړی دئ"[۳].

د دغه تفسیر د دوهم او دریم ټوک په اړه استاد هیوادمل وایي، چې: "د سر برخه ئې ما نه کړه پیدا" د دې تفسیر دوهم ټوک زموږ استاد په دې ترقیمه باندي ختم کړی ښوولی دی: "تمت تمام شد هذا تفسیر افغانی که سه جلد کردیم و این جلد ثاني بود، در روز یکشنبه در غرهٔ شوال و در وقت بدست خط فقیر الحقیر ملا پائنده خان ابن توکل ساکن حسن بیک در قلعه کهنه ۱۲۸۱"[۴].

د دریم ټوک دغه ترقیمه راوړي:

"هذا تصنیف مولایي اخونزاده ننگرهاری خصوص در موضع سفید کوه خصوص در

موضع کدیخیل تفسیر افغاني کرده، اکبری شفقت بر افغانان، سنه ۱۲۷۹ یکهزار دو صد و هفتاد و نه که فراغ یافت بدست خط فقیر الحقیر ملا پاینده خسته بن مغفور مرحوم توکل غرب خسته، اللهم اغفر لکاتبه و لوالدیه و لمصنفه و لقاریه امین یارب العلمین "[۵].

دا خبره خو څرګنده سوه، چي د دې تفسیر لومړی ټوک زما تر دې لیکني مخکي ناڅرګند دئ. دلته زما د لیک موخه دا ده، چي زه د دې نیمګړي تفسیر چي په پښتو ژبه لیکل سوی دئ، د بشپړېدو زیری پر پښتو لوستونکو وکړم. د دې تفسیر لومړی ټوک تر بسم الله او دعاییه کلمو وروسته په دې تورو پیلېږي:

"الحمدلله الذي خلق الانسان لمعرفت ذاته وأطمان قلوب المؤمنین بأنوار لمعاته و نور قلوب العارفین بأیقان سبحاته و رشاد السبیل الطالبین بسلوک الارادته و عتق المحبین لبرق ذات رب العالمین بأطهار صفاته وأسس قواعد الشرع بأنزال المحکماة و ایاته و نور موج ظلمات الکفر بنور محمد و معجزاته و اجر المطیعین بأتیان سنه و صلوة صلے الله تعالے علے خیر خلقه محمد و آله و اولاده و اصحابه و ازواجه اجمعین. وائي بنده عصام الدین احمد زوی د اعلم العلماء عزیز الله زوی د افضل الفضلا عصمت الله چغتي چي توفیق غواړم له خدایه مهربان، چه تفسیر وښکوم دپاره د أفغانانُ، پژبه پښتو کوتاه أسان..."[۶].

پای ئې داسي دئ:

"په عزة د ده په کبریا د ده دلیل دے په شفاعت پس له ازن ذَالِکمُ اللهُ رَبّکُم دا یاد شوے په دا صفتونو لوي سره چه خالق مدبر دے چه دے خداي رب ستاسے دے، فَاعبُدُوهُ پس بنده کیے کوي وده وته کوښي نه و ملک و ته نه و انسان و ته هیڅ څوک ور سره شریک مه شمیرے فضل له جماداتو أَفَلاتذکرُون، ایا تاسي بادغام التاء و فے الاصل فے الذال ۱۲ ج"[۷]. ترقیمه ئې داسي ده:

تمت تمام شد تفسیر افغاني جلد اول فے شهر غره ذوالقعدة الحرام بروز چهار شنبه در وقت نیم روز بدست خط فقیر الحقیر ملا پاینده خان ساکن حسکبیک (حسن بیګ) ابن توکل مرحوم اللهم اغفرله و لوالده ولاستاذیه و لجمیع المومنین والمؤمنات والسملمین والمسلمات برحمتک یاارحم الرحمین قهریا بر من مکن قهر و عتاب، که خطای رفت باشد درکتاب، هرکه خواند دوعا طمع داریم، زانکه من بند کنه کاریم، سنه ۱۲۸۰، تمت تمام شد کار من میزان شد، شیطان من غلام شد"[۸].

د دې تفسیر لیک دود (املا) داسي ده:

چه د (چي) له پاره، کوم توري چي په پای کي (هـ) لري، هغه نه راوړي، د زور(َ) په لیکلو ئې څرګندوي، لکه حرفون َ، د (حرفونه) له پاره، په د پای (هـ) نه لري، د بل توری پر سر ئې لیکي، پزړه د (په زړه) له پاره، لعذاب د (له عذابه) له پاره، ک د (ګ) له پاره، ي د (يې) له پاره، د (ے) ئې ډېر استعمال کړی دئ، خو د (ي) او (ی) رنګونه هم لري. څ د (ځ) له پاره راوړي. کښ د

(کښې) له پاره لیکي، د قرآن پاک پر آیاتونو باندي ئې زور زیر لګولي دي او د متن په میان کي جلا ښکاري.

د تفسیر افغاني د دې لومړي ټوک کچه ۲۶ × ۵۰. ۱۵ سم ده، متن ئې ۱۹ × ۵۰. ۹ سم ده.

ټول مخونه ئې اووه سوه پنځه نیوي (۷۹۵) دي. چي په یوه مخ کي ۱۷ کرښې لري. په توره سیاهي پر خړ نري کاغذ لیکل سوی دئ. ځای په ځای ئې د شنګرف لیکنې هم سته. جدول نه لري. کاتب ئې ملا پاینده خان خسته دئ؛ چي د توکل زوی دئ؛ د حسن بیګ قلعه کهنه(؟) اوسېدونکی وو. خط ئې نسخ او نستعلیق دئ. د قرآن پاک آیتونه ئې په نسخ کښلي دي او د پښتو برخه ئې په نستعلیق کي ده. پر آیتونو باندي برسیره کرښه هم کاږي. ځای په ځای په څنډه کي حاشیې هم لري. چي په پښتو، پارسي او عربي ژبه باندي دي. د حاشیې خط د دغه کاتب خسته دئ. د څرمني سوربخون پوښ لري، نسخه ئې د میا طارق شاه په کتابتون (پېښور) کي خوندي ده. چي دهٔ د خپل کتابتون نوم (کاکاخیل کتابتون) ټاکلی دئ.

د دې نسخې د کاتب خط ډېر خوندور نه دئ. خو په ویلو کي ګراني نه پېښوي، د هري غونډلي (جملې) په پای کي درې څلور تور ټکي کاږي، چي د بلي جملې څخه بېله ښکاري. توري یو بل ته ډېر سره نژدې دي، چي د ښه ترتیب نزاکت نه لري.

اوس که موږ وګورو نو د افغانستان په ملي آرشیف کي خوندي یاد شوي دوه ټوکونه هم د دې کاتب په خط دي او دا لومړی ټوک هم د دهٔ په خط کښلی دئ. چي دا څرګندوي چي کاتب پر یوه ځای د درو سره ټوکونو بشپړېده کړیدي. چي درې کاله ته نژدې زمانه کېږي. خو د زمانې لاس وهنو دغه ټوکونه سره جلا کړي دي، لیري کړي ئې دي، د خوند خبره دا ده، چي د کتاب د خوندي ساتلو ذهن لرونکو لاسونو ته رسېدلي دي او له بربادېدو خوندي سوي دي.

مأخذونه:


۱هیوادمل، زلمی- د پښتو نثر اته سوه کاله- دانش چاپ دوهم ۲۰۱۱ ء- ۵۲۰ مخ.

۲. تفسیر افغاني لومړی ټوک (قلمي)- د ملا پاینده خان خسته په خط- د ۱۲۸۰ ق لیک، ۷۹۵ مخ.

۳. هیوادمل ، زلمی- د پښتو نثر اته سوه کاله-دانش چاپ دوهم ۲۰۱۱ء- ۵۲۱مخ.

۴. هیوادمل، زلمی- د پښتو نثر اته سوه کاله- دانش چاپ دوهم ۲۰۱۱ء- ۵۲۱ مخ.

۵. هیوادمل، زلمی- د پښتو نثر اته سوه کاله- دانش چاپ دوهم ۲۰۱۱ء- ۵۲۱ مخ.

۶. تفسیر افغاني لومړی ټوک (قلمي)- د ملا پاینده خان خسته په خط- د ۱۲۸۰ ق لیک، لومړی مخ.

۷. تفسیر افغاني لومړی ټوک (قلمي)- د ملا پاینده خان خسته په خط- د ۱۲۸۰ ق لیک، لومړی مخ.

۸. تفسیر افغاني لومړی ټوک (قلمي)- د ملا پاینده خان خسته په خط- د ۱۲۸۰ ق لیک، لومړی مخ.


***

عصمت الله زهیر /پښتین

# ګلبیدار یو سپیڅلی صوفي شاعر

ګلبیدار لکه بلـــبل په قـــیل و قـــال یم
هـــر سهار لکه بـــورا د ګل په ســـوال یم
د پتنې مسلک مي خوښ دئ د شپې ګر ځم
د هر چا څـــراغ چي بل وي په خوشال یم

اوس هم دا څلوریځه و ما ته ډېر څه را په یادوي، مقصد شل کلونه پخوا ته مي وړي، د زړه د پخوانیو زخمونو د راسپړلو په اورنیو تناوونو کي د یوازیتوب او اوښکو تویولو په ملتیا مي نوو او ویرلړلو وختونو ته د ارمانونو په کفن کي ور حواله کوي، ما به د دې څلوریځي د خالق په اړه د خوبونو او رنګونو تاج محل جوړاوه، همدا ډول به کرار، کرار د کندهاري مکتب د نورو شاعرانو د آثارو د لوستلو وسیله مي هم دا شاعر سو:

د آسمان پر مـــخ که یو هلال راخېژي
زمـــا د یار پر مـــخ جوړه هلال ختلي
په لـــیدو کې د یوه هـــلال اختر سي
ګلبیدار خوشبخت جوړه هلال لیدلي

دا څلوریځه چي اوس هم کله را یادوم یا ئې چیري واورم نو د فارسي دا بیت هم اوس اکثر ورسره رایاد سي:

نه بزم آســـمان و یک ذره در ســــماع
آن هم به کال دل نه فشانو آستین خویش

"د آسمانونو په ویړتیا کي یوه ذره په نڅا ده، د هغې هم دومره ویړتیا په برخه نه سوه چي د زړه د اخلاصه خپلي وزري وغوړوي".

په اولین پلا په کال ۱۹۸۱ع میاشتیزه (اولس کوټه) کي (کندهاري شاعرانو نومي مجلې ته یو لنډه کتنه) تر عنوان لاندي د سیال کاکړ یو تنقیدي لیک زه دې ته اړ ایستلم چي د کندهاري مکتب او ادب لوستلو ته پراختیا او ادامه ورکړم، څومره مواد چي لاس ته راتلو دومره مي تلوسه زیاتېدله، موثره ذریعه عبیدالله جان کندهاری وو، چي تر بل هر کندهاري سندرغاړي په لر او بر پښتنو کي یو ډول محبوبیت لري او د کندهار کلاسیک شاعري ئې ګرندۍ هم ژوندۍ وساتله، همدې جنون په ۱۹۸۵ع کلونو کي د (سرانان) پلني اوړدې او یوې زړې هدیرې ته ورسولم، له ما سره (یوسف بابک) هم ملګری وو، یوه سپېره اوږده هدیره او یوه سپینه خښمه د قبرونو په منځ کي ولاړه د خښمې و مخ ته یو سپین ږیری وچ کلک سړی تر سر ئې سور د جېب دسمال تړلی وو، ناڅاپه ئې راباندي ږغ کړه: راځه - راځه عصمت زهیره راځه.

(شعر د ملغلرو لاړ دئ او لاړ ېيل خپل ترتيب هم خپل ترکيب غواړي، شعر يو غمی دئ، غمی چي په خاورو لړلی بازار ته وروړې هيڅ ارزښت او قيمت نه لري، هم که دا غمی ښه صفا سي په يو ښه ګوتمۍ کي وټومبل سي نو به خورا قيمت او ارزښت پيدا کي).

حيران په دې وم چي ما په خپل ټول ژوند کي مخامخ سړی هيڅ تر دې وړاندي ليدلی نه وو او هغه زه په رسميت پېژندلم، نو مي قرار (بابک) ته وويل چي دا څوک دئ؟

بابک راته وويل چي همدا خو ګل ماما مطلب ګلبيدار دئ، و ما ته سمدستي د ګلبيدار دا غزل را ياده سوه:

**چي د شپې توره کيږدۍ کوچيانو کوچ کړه**
**صبـــحګاه سپينه خــېمه آسماني راغله**
**چي په نور ئې ښايســـته ټــول جهان کی**
**ســـــرنګـــون ورتـــه ډېوه جهاني راغــلــه**
**دا د زلـــفو تـــر هـــــر تار ئې عطر اوري**
**چي ســــهار تازه هـــــوا ريحـــاني راغله**
**چي د ناز پر تخت دربار کړي توري سترګي**
**د نــــرګس او د شــــهلا ارزاني راغــــله**
**و ســـرو لـــبو تې رنـــګزرده ښتان ګوري**
**خـــار زده لـــــکه لاله رامـــــاني راغله**
**ګلبيـــداره! ســاز و باز مجلس مخمور دئ**
**چي د لال و می پياله خـنداني راغله(۱)**

د عبدالغفار بريالي د پوښتني په جواب کي يې راته وويل:

بريالی دومه کوچنی (لاس ئې د مڅکي څخه څه پورته ونياوه) وو خو غټ کتاب به ئې په غېږ کي ورسره وو.

د ګلبيدار د عصر په راوروستيو کلونو کي په کندهاري مکتب کي که څه هم بريالی يو حکمداره ږغ وو خو د ګلبيدار په څېر د سوز او څيري زړه يې برخي وو.

**صبحـــګاه نالان بلـــــبل خوشخوان ناره کړي**
**ګلبيدار بېدل کوګل ســـوزان ښـــکاره کړي**
**چي د زلــفو نســـيم تېر سي په چـــمن کي**
**مست په بوی ئې سي هر ګل ګرېوان پاره کړي[۲]**

يا دا نادره څلوريځه:

**خوش نسيم و ګل بازي ته سهار پاځي**
**د غونچو پلو کي پورته ګلـــــزار پاځي**
**که د زلفو مسيحا دم باندي چـوف کي**
**د کفـــنه به ژونـــدی ګلبيدار پاڅي**

ګلبيدار له ډېرو کلونو څه د سترې ژوند تر وروستۍ سلګۍ د سرانان په هديره کي پاته سو، هم پای دلته ښخ سو، وروسته ئې جسد کندهار ته يووړل سو، په دا وروستيو شپو کي ئې کندهار داسي يادوه:

**باغ و بوســـــتان آباد بهار سې کـــندهار وطنه**
**سرسبز چــــمن ګل و ګلزار سې کندهار وطنه**
**خدای دي قبوله کړي دعا د ګلبيدار ستا په باب**
**چي تل تر تله پر کرار سې کـــــندهار وطـــنه**

"اروښاد ګل محمد ګلبيدار د غلام قادر زوی په ۱۲۹۸ لمريز کال کي د کندهار ښار په دوهمه ناحيه کي وزېږېد، لومړنۍ زده کړي ئې د کندهار په شالمار ښوونځي کي تر لاسه کړې او بيا ئې د کندهار رشيديه منځنی ښوونځی (د احمدشاه بابا ليسې پخوانۍ واني) ولوست، کله چي په افغانستان کي د هوا پوهني اداره جوړه سوه نو اروابناد ګلبيدار د هوا پوهني لومړنی کورس په کابل کي ووايه او تر بشپړېدو وروسته ئې د افغانستان د لومړني متروپولوجسټ په توګه په کندهار کي

د نده ونیوه او د هغه مهال د متروپولوجستانو په ډله کې د سر تن وو.

اروابناد ګلبیدار د لیکګرۍ او انځورګرۍ پر هنر هم ښه برلاسی هنرمند وو او د دې تر څنګه د مذهبي کتابونو په لوستو هم بوخت وو، دا مهال ئې خال، خال شعر هم وایه چې ورو ورو ئې له شعر او تصوف سره مینه زیاته سوه، په پای کې ئې خپله دنده پرېښووه او له د نیایي چارو څخه ګوښه سو.

پر افغانستان د روسانو تر تېري وروسته ئې کډه پر ښا او د کوټې په سراناڼو کې ئې واړول، د سیمي او ښاو خوا خلکو مینه ورځ په ورځ ورسره زیاتېده او تل به ئې مینه وال پر را مات ول، د ده نوم هم ورځ په ورځ خپرېدی، دوه ځلي د بي بي سي راډیو له خوا مرکې ورسره وسوې.

دی د کندهار دئ، د کندهار د سیمي د اولسي شاعرانو په کتار کې د غوره ځای څښتن دئ او د خورا سوځنده میني سوزناکه شعرونه ئې هر نرم زړه ته لاره پیدا کوي او د کندهار د خوږ آوازي سندرغاړي اروابناد عبیدالله جان کندهاري د پاسته او خوندور ږغ له لاري زیات پښتانه د ده له شعرونو سره اشنا دي، دا خوږ ژبی او مین شاعر د ١٣٧٩ لمریز کال د غبرګولي پر ٢٨ مه نېټه د سرانانو په ښهرآغا نومي کمپ کې د شپې پر ١٢ بجې له دې وراني نړۍ څخه د تلپاته هغې پر لور رخصت سو(٣).

ګلبیدار د یوې پوښتني په جواب کې راته وویل چې په ختّه کاکړ پښتون یم.

دا د ګلبیدار یوه لویه خوشبختي ده چې ژوندلیک ئې راته پاته دئ، کنې د کندهاري مکتب زیات شمېر شاعران له ژوندلیکه بې برخي پاته دي، نه وربانديي کوم بشپړلیک تر اوسه پوري سوی دی.

ما یو وار په (ښکلا) مجله کې د ګلبیدار د دېوان د چاپولو هیله څرګنده کړې وه شکر دئ چې زما دا هیله عبدالروف حقیار په عملي او بشپړه توګه سر ته ورسوله، خدای دې اجر ورکړي چې د ګلبیدار دېوان ئې پر لوستونکو ولوراوه او خدای دې نور پښتانه وتوانوي چې د کندهاري مکتب د نوموړو شاعرانو دېوانونه پر موږ لوستونکو ولوروي. زما په اند دا دېوان یو اندازه څکه بشپړ ګڼو چې دا دېوان له یوې داسي مستندي کتابچې یا کتابچو رانقل سوی دئ چې زیاتي لیکني ګلبیدار په خپل لاس پکښې کړي دي او دا کتابچه د نوموړي سندرغاړي ساکزي ماما ملکیت وو او ساکزي ماما به هر کله په کوټه کې له همدې کتابچې څخه شعرونه راباندي اورول. په دا وروستیو شپو کې ساکزی ماما که څه هم ډېر ضعیف وو، خو د خپلي لیونۍ میني او د اوږدې یارانې له کبله به سرانان ته ولاړی د هغې خوا به ئې په کتابچه کې په ګلبیدار صاحب نوې غزل یا بل کوم شعر هم نوشته کړی وو، ساکزی ماما به ډېر خوشاله وو او دا نوی شعر به ئې حتماً په ما اورولو:

یوه ورځ په کوټه کې د سندرغاړي عبدالروف کندهاري سره ناست وم، ساکزی ماما د سرانان څخه راغلی اود ګلبیدار دا نوې سندره چې په ملتاني راګ کې ویل کېږي

رابانديې واورېده، وروسته ئې عبدالروف کندهاري ته په کتابچه کې هم ور نوشته کړه، د ګلبیدار دغه دېوان چې اوس ستاسې په لاسونو کې دئ تقریباً په بشپړه توګه د همدې ساکزي ماما له کتابچو یا کتابچې رانقل سوی دئ. هغه سندره یا بدله دا ده:

پر تخت ناست دئ جانان په ګلشن کې
ورته څـــــــانګې ګلان په ګلشن کې

ساکزي ماما چې به د ګلبیدار د دېوان څه راز ارمان او هیله څرګندوله، په خپل تحریر کې ئې په یوه کتابچه کې داسې هغه پېراګراف لیکلی دئ:

"دغه د ګلبیدار شعر چې ما ته په ژوند کې یادګار راپاته سوی دئ، نو څکه به خاورو بدل نه سي، یعني د ناکسو په لاس ورنه سي او په زرو بدل سي او کتابونه څني چاپ سي، ما که کتابونه څني چاپ نه کړه زه عاجزه یم، وس نه لرم ، اسحاق زی ماما وایم -۶-۷ ۷۹ش".

په کندهاري مکتب کې ملاحسن د تلوکان هندي سبک ته غزل ورتېل کړه هم تصوفي مسایلو دا مهال د کندهاري مکتب غزل ته رجوع وکړه، په کندهاري مکتب کې غزل تصوفي او ماورايي مسایلو ته د خپل نازک مزاج برخلاف څکه وقف سوه، چې د هندي او خراساني سبکونو مخه په ونیسي، ولي چې هندي او د خراساني سبک غزل په ګدړۍ او خلوت د استهزا سمبول بلل کېده.

همدا مهال فارسي غزل دربار زښت اغېزمن وساتل، پښتو غزل د دا ارزښته هم بې برخي وساتل سوه همدا به ئې له علتونو یو علت وانګېرو، چې د پښتو د هر عصر غزل د خپل عصر له تقاضو یو اندازه په څنګ ساتل سوې ده، ماورايي کیفیتونو او تخیلاتي تش ځایونو ته ورتېل سوې ده.

په کندهاري مکتب (د دې مکتب شاعري اولسي نومول به زیاتوب وي لکه چې د یوې مودې داسې چلند روان دئ) کې د مذهبي او مسلکي اړوپېچ ماورا د ښه شعر ویلو پر اساس څو داسې شاهکار نومونه لرو چې د هغه مهال او د دې دورې و غزل ته ئې د موضوع او خیال عصریزه پسول ور ډالۍ کړ هم ئې زښت هنري توکي ذخیره کړل.

په دیني علومو آراسته شاعران عصریزه ادبي موضوعاتو ته (د خپل دور د تقاضو په تناظر کې) وپامېدل، هم ئې د دین د تشهیر موثره ذریعه وانګېرله، د ملامحمدعیسی شخالزي (وفات نامه)، (معراج نامه) او نور اوږده واعظانه حکایتونه د سندري (بدلي) پرته د هغه دور د پلي سوي نظم په فورم کې تخلیق سوي دي هم د کندهاري مکتب (نشرح) د خپل دور د نظم د فورم ځانګړې بېلګه ده.

په کندهاري مکتب څه په مجموعي توګه په پښتو ادب کې دا یو دود ګرځېدلی دئ، سندري حتی غزل ته هم عنوان غوره کړي، د دې دا مطلب نه سو چې د عنوان په لرلو ئې نظم ونومووو، څنګه چې د ګلبیدار په دېوان کې هم دا ستونزه وینو.

د کندهاري مکتب لېوالتیا او اړتیا په هر پېر کې غزل ته هغه هم د ځانګړې، توانمندۍ او د نوي انداز غزل ته پسخېدلې ده، د سردار

مهردل خان په دوره کې ځنان بارکزي د داسي توکو د غزل لمن زښت ویره کړه او راتلونکو ته ئې د غزل زمینه په کندهاري مکتب کي ښه مساعده کړه، وروسته غزل تر یو مخصوصي دورې د عقیدوي مسلک پیرو پاته سوه، همدا مهال غزل، سندري یا بدلي ته راوټالېده، معماتي شاعري تر نوره شاعري مقدسه او د اولس خوښه او غوښتنه ونومول سوه او د شعر مواد د عقیدوي مسلک سره عموماً د عربي ادبیاتو الهامېدل کندهاري مکتب دا توان او پراختیا لرله چې د عربي ادبیاتو سره هندي او د خراساني ادبیاتو توکي او نازکخیالۍ په ځان ومني، هم د فارسي غزل په مقابل کي ځان نور هم سینګار کړی.

د ملاعبدالمنان حیرت دا مشهوره سندره (بدله) د داغ دهلوي د یوي مشهوري غزلي مرکزي خیال پامیرې:

محبت اول آســـــانه په نظر راغی
په آخر کي مي نصیب خوني جګر راغی

د هندي سبک فکري میلان حتی د آهنګونو کمپوزونه (بدون بې دې چې مور آرین نسل لرونکي یو) د هندي موسیقۍ اروا د ملا عبدالمنان حیرت، ملا محمدانور کندهاري او ګلبیدار په شاعري کي اخښلې وینو هغه هم د شنې او زرغونې په مثال، همدا ډول ملا میر یحیی، عبدالله محزون، رحمت الله بابا او ملا عبدالسلام کرزی د عربي ادبیاتو اغېزمن تلپاته نومونه دي.

کندهار چي د فکر، فلسفي، دیني علومو او نازکخیالۍ مرکز ګرځېدلی دئ، د عراقي سبک پرته د هندي او خراساني سبک اغېزه یو اندازه زیاته پلي کړې ده، همدغه لړۍ نن هم په دغه ترتیب روانه ګورو "حافظ، سعدي، جامي په عراقي سبک پوري ټومبلي نومونه دي همدا ډول بیدل، صایب تبریزي، جلال اسیر او ظهوري په هندي سبک تړلي روښانه څېرې دي"(۴).

د ګلبیدار په شاعري کي د معنا د سینګار او زېبایش پرته د الفاظو ښایست، موزونیت، معنویت او د خیال و فکر سپېڅلتیا او ژورتیا، ژوبلي سوي ارواوي لا د ځان طوافګري کړې او د تخیل سندریزي اوښکي د تسکین و جزیرو ته وبلوي، دا هم یو څرګند حقیقت دئ چي د ګلبیدار د شاعرۍ ځانګړې ارزښت د نازکخیالۍ سره سره د وحدت الوجود مسایل او باریکۍ څېړل او پلي کول دي او د مادي حرصمندۍ په دې برق رفتاره وختونو کي ناقراري ارواوي تصوف او عملي صوفي ایزم ته بولي:

**حافظ یم چي په یاد مي دئ تفسیر د میکدې**
**بنیاو ګلـــــبیدار یمه فــــقیر د میـــکدې**
**د زړه بلبل مي ږغ کي د توحید د ګل پر ښاخ**
**داستان د خلـــیل وایي مدد پیر د مـــیکدې**

د تصوف د وروستي پړاو په اړه ئې دا څلوریځه ولولئ:

**چي مي حال تا ته عیان دئ و بیان ته حاجت نسته**
**درد زما که بې درمان دئ و درمان ته حــاجت نسته**
**پروانه رنګ ګلبیدار یم په صحبت کي خلوت سوی**
**دل و جان مي د جانان دئ و جهان ته حاجت نسته**

دا بیت ئې وګورئ:

دالس په میو مست ستا محبت کړم برخوردار
حسنِ عشقِ توحید پرست یم پرستاره یار زما

دا بیت خو ئې انتها کوي:

لمونځ چې کړم د یار د وروځو په محراب کې
ګلبیدار ځان لمبوم د ځان په وینو

دنیا پرېښوول (ترکِ دنیا) ځان ته یوازیتوب غوره کول او دنیا تش یو رنګین افسون انګېرل د ګلبیدار په شاعرۍ کې د پورتني عبارت په دایره کې راځي او د خدای او د عاشقانو ارزو او د ژوند مرام خو تش او تش همدا وي.

د یو اردو ژبي شاعر په قول شاعر د ښایسته او خوندورو الفاظو (ټکو) په لټون شپه پر ځان رڼا ورځ کړي، خو چې څه مهال ټول خلک بیده سي نو شاعر روڼي سترګي ناست وي. همدا حال به سل کې سل د ګلبیدار په عملي توګه وو:

عاشـقان چې نیمه شپه سي دوعاوکي
ګلــبیداره! حبیب غــواړي ژړاوکي
د پینځو ورځــو میلمه په ادب کښېنه
چې د کور خاوند دي بیا مېلمستیا وکي

مولانا جلال الدین رومی په یوه مثنوي کي وايي: د کوم څه چي زه طلبګاره یم هغه زښت د زړه د سوځېدلو شی (څیز) دئ، د نړۍ تر ټولو افضل او قیمت بها شی پټ په تیاره کي د شپې د خدای لټون او د وجد حالت دئ.

همدا د خدای لټون او د وجد حالت د ګلبیدار تر ټولو نېکو شتمنیو لویه او افضله شتمني ده، زړه سوځېدل د ګلبیدار د روغ عمر تلوسه او د ژوند د تېرولو یوه رښتینې پیلامه وه:

**افرین، پر افرین دئ ستا له رویه لمر ختلی**
**نازنین یو نازنین دئ هـــغه ته یې نازولی**
**ستا د عشق په تېغ شهید زړه شکایت رنګه ګلګون سي**
**ګلبیدار هسي خونین دئ تا پر زړه باندي ویشتلی(۵)**

په کندهاري مکتب کي ښاغلي ولي محمد مخلص هم د هغه مقام حقدار دئ، کوم مقام چي په پښتو ادب کي د اروابناد ملنګ جان په برخه دئ، بلکې د مخلص ځانګړتیا د ملنګ جان په مقابل کي دا ده چي مخلص نظم د عصریزه ژانر په فورم کي تخلیق کړ ولي چي نظم مغربي ژانر دئ او مخلص مغربي لټرېچر لوستي وو، د نظم په رښتیني مزاج پوهېدی او نظم ئې په کندهاري مکتب کي د عصریز چلند سره بلدولو له پاره فعاله رول ولوباوه، ملي او اجتماعي هم د خلکو مسایل او ټولنیز واقعیتونه ئې په قوي توګه او خلاص ذهن وځېړل هم ئې انتقادي ریالیزم ته پاملرنه وکړه خو دا ملي روحیه په کندهاري مکتب کي وروسته د پامه واچول سوه دا په څه؟

ګلبیدار چي د حساس ذهن او دردمن زړه لرونکی یو سپېڅلی شاعر دئ چیري هم دا افغاني هوډ او ملي روحیه د پامه نه اچوي، حتی د پښتونخوا ځېلي پښتانه چي د بهټو د ناروا او استبدادي شکنجو پر ضد د حریت او بغاوت بیرغ رپاند ساتلو له پاره په کندهار کي د بابا صاحب په اولسوالۍ کی کمپ جوړ کړو نو ئې ګلبیدار مبارزه داسي وستایله:

**د پښتونخوا ورونو زلمیانو استقلال مو مبارک سه**
**اې د غیرت د غرو زمریانو دا ښه حـــال مو مبارک سه**
**د حریت په شنه چمن کي ګلبیدار ثناخوان وايي**
**د حریت د بڼ طوطیانو زرغون شال مو مبارک سه**

ګلبیدار په حریت او ملي استقلال کي د پښتنو عظمت هم افتخارویني:

اســـتقلال مـــلي اختر دئ مبارک د پښتنو
استقلال زېب و زېور دئ ډک تو پک د پښتنو

استقلال شیرین نعمت دئ گلبیدار شکر گذار
استقلال علم و هنر دئ ښه مسلک د پښتنو

د گلبیدار شعر چي د تخیل او نازک مزاجۍ پرته د نوو هنري توکو الهام اخلي، همدا ډول په کندهاري مکتب کي د ځانگړي شعري لاری تعقیبولو پر اساس حق لري چي داسي ووایي:

نه مي شعر په شعر ترلی د بل چـــا دئ
نه مي زړه په مهر پېیلی د بل چـــا دئ
ستا چشمانو گلبیدار د ځان خپل کړی
نه چشـــــمانو سحر کړی د بل چا دئ

د فارسي غزل په ډول رندانه شاعري په کندهاري مکتب کي د فارسي غوندي یو لرغونی دود دئ، رندانه شاعري بېل، بېل ډولونه لري(۱) د می، جام او ساقي په اړه شعرونه ویل، د شراب ستاینه کول، میخوري، میکده ، پیرمغان راننگول(۲) په شیخ، زاهد، ملا او محتسب پوري ټوکي کول، د رندانه شاعرۍ یو ډول دا هم گورو چي قلندرانه او مستانه شعرونه بیانوي چي دا انداز ئې تصوف ته ورته دئ(۶).

خیام په خپله یوه رباعي کي داسي وایي:

من می خورم و مخالفان از چپ و راست
گویند مخـــور باده که دین را اعدا است
چون دانســـتم که می عدوی این است
بالله خورم خـــون عـــدو را که روا است

گلبیدار وایي:

ټول مستان دي که رندان دي خدمتگار د میخانې دي
گلبیدار هم په مـــــژگانو میـــــخانه مدام جارو کا

رضي نیشاپوري وایي، شراب پراته دي، هم مي دلبر تر څنگ ناست دئ او زه دي خمار پاته سم او د عیش او عشرت څخه دي بې برخي واوسم:

شراب حاضر و دلبر ندیم و من مخمور
چرا نشسته ام از عشرت و طرب مجور

گلبیدار وایي:

**د میخانې پر در مي ســــــر اینښی تر مرگه پوري**
**په مرگ مي هم غسل وکفن بس میو جام ساقیا**

**سراسر په سرو شرابو رنگینه مي سره چوغه سوه**
**محتسبه! غصه مه کــــړه د نصیب څخه نه څم**

**د زهد نیال دي وچ لرگی دئ چابک سوځي په اور**
**عشق مي سور اور دئ لـــگولی گلنار بیا راځــــم**

د رندانه شاعرۍ یو ډول په موسم پوري چورلي سلمان ساوجي وایي، د سپرلي په موسم کي چي دي وس کار کوي لب د یار، لب جو، لب د جام چي پرې نه ږدې:

تا توانی مده از کف به بهار ای ساقی
لب جو و لب جام و لب یار ای ساقی

یو بل شاعر وایي:

د سپرلي وریځي اوښکي وروي، ساقي گلونه وپاشه او شراب راوړه:

اشک ریز آمده است ابر بهار
ساقـــیا گل بریزه باده بیار

حافظ وایي:

زه هیڅکله هم د سپرلي په موسم کي شراب نه سم پرېښوولای ولي چي زه د عقلمندۍ دعوه لرم، نو به دا کار څنگه کوم:

حاشا که من به موسم گل ترک می کنم
من لاف عـــقل می زنم این کار کی کنم

حافظ یو بل ځای وایي چي، یو سهار مي دا نیت وکړ چي د توبې ایستلو په خاطر به

استخاره کوم اوس چي توبه شکن سپرلی را روان دئ نو زه څه کولای سم:

به عزم تو به سحر گفتم استخاره کنم
بهار توبه شکن می رسد چه چاره کنم

د گلبیدار د دا رندانه غزل څخه دا دوه بیتونه ولولئ:

توبه، توبه شکست پیمانه نوش یم ولي
تر ســـر یم تېر عهد مي شــــباب که را

رشک بتان ستا سپینه خوله سره لبان
حسنِ لـــــــذت قــند و گلاب که را

گل به درکړم گل به راکې گل په گل ســـودا مزه کا
زه دي خپل یم ته مي خپل یې خپل و خپل اشنا مزه کا

د سینې په گل بهار کې گلبیداره! قصر جوړ که
زلیخا رنگ لېمه فرش که و قدم ته د جــــانان

گلبیدار په یوه سندره کې وایي:

موســـم د وصــــــل باد بهار دئ
خزان د هـــجر چي ترې فرار دئ

داسي پسرلی..... غواړم هر کړی
راسه خوشـــــخرامه وایم هر کلی

(سرخوشي) وایي زه شراب د مستۍ او خوند په خاطر نه څښم، بلکې د شراب خوری په وسیله زړه له ریا مینځم:

ما می برای لذت مستی نمی خوریم
از باده شستشوی درون از ریا کـنیم

حافظ وایي که ساقي راباندي د کرم نظر ساتي دا ئې حق دئ، ولي چي ما هم ټول عمر د میکدې خدمت کړی دئ:

گوشه چشمی اگر ساقی بما دارد رواست
عمرها در گوشه میخانه خدمت کرده ام

گلبیدار وایي:

ســــاقي راغی جام په لاس کي خماریانو
خپل ځـــانونه تر قربان کړئ میخوارانو

گلبیدار چي دل وجان خپل تر جار کړی
وچ کالـــــبد د عشق په برق گرځي یارانو

د یادولو دي وي چي گلبیدار په عملي توگه یو سپېڅلی (صوفي) وو او د (شراب) کلمه د سپېڅلتیا او اروایي پاکیزگۍ په شالید کي کاروي او دا ئې د مقدس عشق د اور تونبی دئ چي د مغان، میخور، ساقي، میخانې په اصطلاحاتو ریا پرستان رټېردوي او د استهزا غشي ئې په ارواوو، کي ورپیوستوي:

لاس مي گرېوان د می فروش نیولی
زړه مي پیـــمان د مــــیو نوش راولی

د عشق په جام سو گلبیدار مســتانه
پر لوی سهار یې عقل و هوش بایللی

ماخذونه:


۱. ښکلا مجله، کندهار، دوهم کال – لومړی گڼه.
۲. کندهار مجله، کال ۱۹۷۸ع.
۳. ښکلا مجله، کندهار دوهم کال لومړی گڼه: د بشیر احمد کندهاري لیکنه.
۴. فارسی غزل اور اس کا ارتقا.
۵. کندهار مجله: کال ۱۹۷۸ع.
۶. فارسی غزل اور اس کا ارتقا: ۱۸۷.

پوهیالی حضرت ولي هوتک

# د غازي امان الله خان سپکاوی د ټول افغانیت ســپکاوی دئ!

غازي امان الله خان د افغانستان د خپلواکۍ ګټونکی پاچا، د وخت د ديني علماوو له لوري منل سوی ولي الامر، د هغه مهال د ټولو اسلامي ملکونو له لوري پېژندل سوی مجاهد، پر مسلمان امت یو مهربان مشر، د کفر او انګرېز لوی دښمن، اسلامیت، ورورلۍ، عدالت، آزادۍ، علم، وطنپالني، مېړاني او صداقت، خلوص او د الله(ج) بندګۍ ته لوی رابلونکی، د اسلامي هیوادونو د خپلواکۍ او ازادۍ لوی قهرمان، د شر او فساد مخنیوونکی، د ظالم په وړاندي د مظلوم ملاتړی، د پښتونولۍ او افغانیت سمبول، د رښتیني ديني علماوو سره لوی مرسته کوونکی، د نهضتونو دغه ستر مشر، د هند د نیمي وچي د آزادۍ دغه ستره څېره، د اسلامي امت د ویاړ دغه لویه نخښه، د غازیانو دغه لوی سالار، په هیواد کي د نوي ژوند او د ترقۍ او پرمختګ دغه لوی انسان، د هیواد دننه زړه سواند رهبر او په بهر کي د ترکیې د عصري کېدو دغه لوی مرستندوی او په لوېدیځ کي د آسیا د اتل په توګه پېژندل سوې څېره د الله(ج) لویه لورینه او د افغانستان د تاریخ یوه ځلانده او ویاړلې څېره ده.

د انګرېزي استعمار دغه ماتوونکی مجاهد او د ملت غمخوار او د افغانستان د ترقۍ رښتیني غوښتونکی زموږ د هر یوه په زړونو کي ځای لري.

غازي امان الله خان نه یوازي دا چي د اسلام د ستر دښمن (انګرېز) او د ټولو ښکیل سویو هیوادونو د شتمنیو لوټمار استعمار ته ماته ورکړه بلکي د هیواد دننه ئې ملت یو موټی کړ او د افغانستان نوم ئې په نړۍ کي وځلاوه.

انګرېز د غازي امان الله خان په توره او تدبیر له داسي شرموونکي ماتي سره مخامخ سو چي تر اوسه ئې نه سي هېرولای، نو ځکه تر اوسه پوري زموږ د ملي وحدت، ترقۍ او استقلال په لاره کي خنډونه جوړوي او په بېلابېلو نومونو خپل جاسوسان او اجنټان رااستوي او موږ ته ستونزي جوړوي، خو دا باید هېره نه کړي چي اوسنی نسل او زموږ اوسني ځوانان هماغه د غازي امان الله خان د مکتب پیروان دي، دوی د آزادۍ درس له دغه ستر غازي څخه اخیستی دئ او د وطن سره ئې مینه ورڅخه زده کړې ده د غازي امان الله خان نوم او خاطرو ته درناوی کوو او د دغه لوی انسان روح ته د دعا لاسونه پورته کوو او د جمعیت اصلاح د یوه غړي خبري په کلکو ټکو غندو.

حبیب الله قلم مل

# هغه خبره چې یو کتاب پر لیکل سوی دئ

په کندهار کې د کندهار ادبي انجمن اتیایمه کلیزه پر ۱۴/ ۱۰/ ۱۳۹۱ تاریخ د یو سیمینار په ترڅ کې ولمانځل سوه، زه هم دې سیمینار ته ورغلی وم د مقالو تر ویلو وروسته د سیمینار په اخیر کې د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست چاپ سوي، کتابونه د سمینار پر ګډونوالو ووېشل سول. ما ته ئي هم یو سیټ کتابونه راکړل، کله چې مي کتابونه سره واړول، راواړول، نور ټول کتابونه مي مخکي لیدلی ول خو یو کتاب ښکښي نوی راته ښکاره سو. د کتاب پر پښتي لیکلي ول (موږ محوه کېږو). دا کتاب د استاد ډاکتر عبدالرازق پالوال په لاس لیکلی اثر وو.

د کتاب په ویلو مي شروع وکړه او پاڼي مي ئي په دې هدف په بې صبرۍ اړولې چې پوهه او په مضمون خان خبر کړم چې څنګه محوه کېږو، د کتاب لیکوال لیکلي ول چې پروسږ کال په کابل کې د اجمل ختیک په یاد سیمینار جوړ سوی وو. له کندهار څخه ئي څو تنه لیکوالان او شاعران دې سیمینار ته ورغوښتي ول د هغوی له جملې څخه یو استاد حیات الله رفیقي صاحب او بل نجیب الله هوتکي صاحب ول زما د کوټې ملګری هوتکي صاحب وو، کله چې له سیمینار څخه کوټې ته راغلو نو په کوټه کې تلویزیون پروت وو. هوتکي صاحب ئي ریموټ راواخیست او په تلویزیون کې ئې چینلونه اړول را اړول زما په فکر داسي شي ئي پکښي پیدا نه کړ چې هغه دي زموږ د کمال نمونه وي نو ئې ما ته مخ راواړه او وې ویل چې: "استاده! موږ محوه کېږو".

دې جملې پر ښاغلي استاد ډاکتر عبدالرازق پالوال باندي دونه تاثیر کړی وو چې هغه ئې و دې ته اړ ایستلي وو چې د دې خبري په ارتباط پوره کتاب ولیکي او ټولني ته ئې وړاندي کړي او دا خبره په رښتیا سره ډېره لویه خبره ده چې (موږ محوه کېږو) او د دې خبري تر شا ډېري لویي کیسې او ډېر مهم مفهومونه پراته دي.

رښتیا هم انسان باید یا داسي خوله ولري چې خبر ئې د بل انسان پر زړه تاثیر وکړي او یا داسي زړه ولري چې د بل چا خبره تاثیر پر وکړي، زه له خپلو دې دواړو استادانو

ځخه مننه کوم چې یوه استاد په درنه خبره نازولي یو او بل درانه استاد په درانه کتاب نازولي یو موږ هر یو باید داسې درنې خبرې وکړو چې یو لیکوال ئې په اورېدو دې ته مجبور سي چې په ارتباط ئې کتابونه، کتابونه موضوعات ولیکي. د دې کتاب لوستل او د دې خبرې اورېدل پر ما ځکه تاثیر وکړ، چې موږ پښتانه باید ویښ سو، تر څو به لا په داسې خوب بیده یو چې یوازې ئې د اسرافیل شپېلۍ راویښولای سي. زه چې څونه پوهېږم موږ پښتانه بل ږغ نه سي راویښولای ماسوا د پوهې له ږغ څخه، نو راسئ چې یوازې د پوهې په طلب پسې ووځو او خپله د کلونو کلونو ورکه تر لاس کړو.

پای

لیکوال: ن. نوري

## ګناهکار په ګناه بد ایسي، بخښونکی په عفوه ښه ایسي

وايي چې: د یوه باچا مقرب یوه ګناه کړې وه، هم په هغه اثر ئې بندي کړی وو. بله ورځ باچا د ده په خصوص کې له نورو خواصو سره مشاورت کاوه، چې باید څه سزا ورکړه سي؟ یوه له خواصو څخه وویل: که زه ستا پر ځای وای د مرګ حکم مې پر کاوه.

باچا وویل: ته خو زما پر ځای نه یې. باید زه داسې کار وکم چې هغه ستا مخالف وي. ما خو دا سړی بخښلی دئ، ځکه ګناه له ده څخه بده ښکارېده، زما څخه به عفوه ښه وایسېږي.

فرد

د یو خوار له لاسه وکه سې ګناه
ده لازم عفــوه کــول د سر بالا

## اووم نقل

وايي چې: په سمرقند کې یو ظالم وو چې خلق دېر ځني په عذاب وه او خورا ظلم ئې کاوه. د ده له لاسه د مظلومانو آه تر آسمانو ورسېدی. څو یوه شپه دا ظالم بیده وو، ناببره آسماني غشی راغی او د دې ظالم په سینه کې ښخ سو او تر شا ئې ووت. سهار چې خلقو وکتی ظالم مړ دئ او غشی ئې په سینه کې جګ ولاړ دئ. غشی ئې له سینې څخه ځني وکیښ داسې پر لیکلي وه:

تبـغي و للمبغي سهام ینتظر
نفدني الاضلاع من و خرالابر

یعني تا ظلم کاوه او د ظالمانو له پاره دغسې غشي سته، چې تر تا به لکه ستن ووزي.

## نظم

اې چې کښې دې ښو، تا غشی پر کمانه
د مظـلوم و خــوا تې ولې په نښانه
فکر وکــړه چې دي زړه کی ورغمګین
د غمـــګین زړګي آه درومي تر آسمانه
که ســتا غشی فولادي تر الماس تېز وي
دآه غشی ســوری کوي غر په ښه شانه
د مظلوم له آه څــخه لیري لیري ښوره
د مظـلوم غشی خــطا نه ځي له چا نه

پای

ژباړه: احمد صميم

# نظامي گنجوي!
# "هفت پيکر" او "ليلی و مجنون" ئې

نوم ئې الياس لقب ئې نظامي دئ، څوک چې ئې ويس بولي اشتباه کوي.

نظامي په ۵۳۵هـ ق کال د آذر بايجان په گنجه کې پيدا سوی دئ. د پلار نوم ئې يوسف د زکي زوی دئ. مور ئې کُردی رييسه وه. ماندينه ئې آفاق نومېده، مينځه وه چې د شروان حاکم شاه اخستان وربخښلې وه او د زوی نوم ئې محمد وو. نظامي د ۶۱۴ - ۶۱۹ تر منځ وفات سوی دئ. قبر ئې په گنجه کې دئ.

**د نظامي معاصر شعراء:**

خاقاني، رشيدالدين وطواط، انوري، ظهير الدين فاريابي، جمال الدين اصفهاني.

**د نظامي پيروان:**

امير خسرو دهلوي، کمال الدين محمود بن علي کرماني مشهور په خواجو، عبدالرحمن جامي، کاتبي ترشيزي، وحشي کرماني، فيض دکني، هاتفي، قاسمي، عرفي، مکتبي، فيضي، فياضي، اشرف مراعي، آذر بيگدلي.

نظامي د مخزن الاسرار په سر کې ليکي:

بسم الله الرحمن الرحيم
هست کليد درِ گنج حکيم

په خسرو او شيرين کې ليکي، چې:

نظامی بس کن اين گفتار خاموش
چه گويی باجهان پنبه در گوش

نظامي شعر او شرع سره لازم بولي:

قافيه سنجان که سخن بر کشند
گنج دو عالم به سخن در کشند

ميوهٔ دادمت ز باغ ضمير
چرب و شيرين چو انگبين در شير

ذوق انجير داده دانهٔ او
مغز بادام در ميانهٔ او

پيش بيرونيان برونش نغز
وز درونش درونيان را مغز

نظامي پنځه مثنوي مجموعې لري، چې په پنج گنج، گنجنامه او خمسه سره شهرت لري:

۱. مخزن الاسرار

۲. خسرو و شیرین
۳. لیلی و مجنون
۴. هفت پیکر
۵. سکندر نامه

د ده ابیات له ژورو معانیو څخه ډک دي، څکه و ډېر تفکر او تعمق غواړي

## هفت پیکر

هفت پیکر چي په (بهرامنامه) او (هفت گنبد) سره هم شهرت لري په کال ۵۹۳هـ ق کي لیکل سوی او "علاء الدین کرب ارسلان" ته ډالۍ سوی دئ. دا مجموعه د بهرام گور یا پنځم ساساني بهرام په باره کي لیکل سوې ده.

داستان داسي شروع کېږي، چي: د یزدگرد ټوله اولادونه چي وزېږي پسله څه وخته ومري، خو کله چي بهرام پیدا سو نو منجمان ئې پلار ته وایي چي بهرام باید په ایران کي غټ نه سي او که عربو ته واستول سي نو حتماً ژوندی پاتېږي او بیا به پاچا کېږي. یزدگرد هم خپل زوی بهرام یمن ته استوي، د یمن پاچا نعمان او زوی ئې منذر د بهرام پالنه پر غاړه اخلي. نعمان د بهرام له پاره د (خُوَرنَق) په نامه قصر جوړوي او خپله گوښه نشیني اختیاروي او پر سلطنت باندي (منذر) کښېني. بهرام علوم زده کړل، آس سورلي، غشي ویشتل او د سلاح استعمالول ئې له منذر څخه زده کړل.

یوه ورځ بهرام د خورنق په قصر کي قدم واهه، یوه کوټه ئې ولیدله چي دروازه ئې تړلې وه. دروازه ئې خلاصه کړه کوټې ته دننه سو. پر دېوالو ئې اووه ښکلي نقشونه ولیدل. دا تصویرونه د اوو مملکتو د پاچاهانو د لوڼو ول، چي د بهرام تصویر هم د دوی په منځ کي رسم سوی وو. په تصویر کي داسي ښکاري چي اووه سره نجوني د ده و طرف ته گوري.

کله چي بهرام تر منذر وروسته قدرت ته رسېږي نو د دغو اوو نجونو سره جلا جلا واده کوي. د هري یوې له پاره په یوه خاص رنگ سره گنبده جوړوي او بهرام هره شپه په یوه یوه گنبده کي مېلمه وي.

یزدگرد چي له زوی څخه مایوسه کېږي او نه ورته راځي نو خپل ولیعهد یو بل شخص ټاکي چي خسرو نومېږي. بهرام ناآرامه کېږي، راځي خسرو ته حال را استوي چي له پاچهۍ څخه لاس واخله. خو خسرو دا خبره نه مني. درباریان او د خسرو طرفداران فیصله کوي چي د شاهۍ تاج به د دو زمریو تر منځ کښېږدو هر چا چي تاج راواخیستی نو پاچهي به هم د هغه وي. بهرام خنجر په لاس او چنگک په خوله کي ورځغلي او د زمریانو تر منځ تاج پر سر کوي، خسرو له دې حالته ببرېږي او د ایران پاچهي ورپرېږدي.

څنگه چي یزدگرد په ستم او ظلم سره مشهور وو، بالعکس زوی ئې بهرام بخششونه کوي. مالیات بخښي، خلگو ته د خوشحالۍ او آزادۍ موقع ورکوي او اولس ډېر په آرامي سره ژوند تېروي.

یوه ورځ بهرام صحرا ته په ښکار پسي تللی دئ، په یوه (گوره خر) یا غرني خره پسې سو او پسي ځغلي گوره خر ځني ځغلي څوآخر بهرام یوه ژور ځاه ته لوېږي، ملگري او سر بازان ئې تر ډېره وخته پسي گرځېدل او پیدا ئې نه

کړ. داستان هم پر دې ځای ختمېږي او دی په بهرام گور سره مشهوره کېږي.

سعدي صاحب هم د ده یادآوري د گلستان په یوه بیت کې داسې کوي:

**نبشت است بر گور بهرام گور**
کــه چشـم تنگ دنیـادار را
یا قناعت پُر کند یا خاکِ گور

## لیلی و مجنون

دا مجموعه ۴۷۰۰ بیته لري. په ۵۸۸هـ کې ئې په څلورو میاشتو یو څه کم وخت کې لیکلې او (شروانشاه ابوالمظفر اخستان بن منوچهر) ته ئې ډالۍ کړېده.

کیسه داسې شروع کېږي، چې: د مجنون پلار عامر چې د عامریانو د قبیلې رئیس وو، خدای زوی ورکړ، چې نوم ئې قیس پر کښېښود. قیس غټ سو، مکتب ته ئې واچاوه. نوري نجوني او هلکان هم په دغه صنف کې درس وایي. لیلا او قیس هم په دغه صنف کې څنگ پر څنگ ناست دي، په منځ کې ئې مینه او دوستي پیدا کېږي. زړونه سره بایلي دواړي ځوانۍ ته رسېږي.

د مجنون پلار د لیلی پلار ته په مرکه ورځي، د لیلا پلار چې د خپلې قبیلې د رسوماتو پابند وو مرکه جوابوي.

عامریانو قیس ته ډېر نصیحتونه وکړل چې قیس باید د خپل تصمیم څخه منصرف سي، خو قیس د دوی خبرو ته غوږ و نه نیوی او مخ ئې صحرا ته ونیوی تر دې وروسته خلکو ورته د مجنون خطاب کاوه. پلار ئې ډېر غمگین سو. کعبې ته ئې بوت تر څو هدایت پیدا کي، خو قیس په کعبه کې هم د لیلا لیلا نارې وهلې. د لیلا پلار په زوره لیلا (ابن سلام) ته ورکوي کله چې مجنون خبر ېږي د همېشه له پاره د بیابان لاره نیسي او له وحشي حیواناتو سره ژوند کوي.

یو وخت یو ښکاري څو دانې هوسیانې په دام کې نیولي دي، مجنون چې د هوسیو سترگې گوري د لیلا سترگې وریادېږي. کوم آس چې د مجنون سره ورسره وو، هغه ښکاري ته په گرو ورکوي او ښکاري هوسیانې آزادوي.

لیلا هم د مجنون له فراقه د بیمارۍ پر بستر غځېږي، د مور سره د مجنون د عشق خبري کوي. مور ته ئې وویل چې مجنون ته به زما پیغام ورسوې چې لیلا هم تر مرگه پوري ستا سره عشق درلود. لیلا مري مجنون خبرېږي. قبر ته ئې راځي ژړا او فریاد کوي او پر دغه قبر پسې مري او داستان پای ته رسېږي.

ماخذ:


۱. د نظامي گنجوي پېژندنه د زینب یزداني په قلم لیکل سوې او ما لنډه کړې او ترجمه کړې ده.
۲. سبعهٔ حکیم نظامی گنجه ای هفت پیکر، به تصحیح وحید دستگردی، ۹۷ – ۹۸ مخونه.
۳. گزیدهٔ مخزن الاسرار، به اهتمام بهروز ثروتیان: ۳۷ مخ.
۴. باکاروانِ حُله، عبدالحسین زرین کوب: ۱۹۷ مخ.
۵. تاریخ ادبیات در ایران، ذبیح الله صفا، دوهم ټوک: ۸۰۳ مخ.

ليکوالان : خالد اقبال ياسر او محمد ارشد رازي



مترجم : نثاراحمد آريا

# نوبل جايزه وړونکي اديبان

## رابندرنات ټاگور

(Rabindranath Tagore)

(۷ مي ۱۸٦۱م کلکته – ۱۷گست ۱۹۴۱م کلکته)

هندوستانی شاعر، هندو فلسوف او نشنليسټ رابندر نات ټاگور په (۱۹۱۳م) کي د نوبل ادبي جايزې مستحق وګڼل سو. د ټاگور مينه وال هغه د (گرو ديو)[1] او (روي ټاکر) په نامه هم بولي. ټاگور د بنگالي ادب ژبه د سانسکريټ د کلاسيک ادب له رنگ څخه د ورځنۍ محاورې ژبې ته را واړوله. نوموړی د هغو اديبانو له ډلې څخه تر ټولو مهم دئ، چي د هندوستاني ټولني ځيني مهم او سپېڅلي اړخونه ئې غربي نړۍ ته ور وپېژندل.

د ټاگور پلار ديوندر نات ټاگور (Debendranath Tagore) نومېد. هغه د (برهمو سماج[2]) د دوو لويو ډلو څخه د يوې لارښود وو. (ټاگور) کلمه د (ټهاکر[3]) اوښتې بڼه ده. ټاگور برهمن[4] وو او کورنۍ ئې د علم او پوهي په ډگر کي له ډېر پخوا څخه نوم درلود. که څه هم غربي پوهان ټاگور ته تر فلسوف ډېر د شاعر په سترگه کتل گوري، خو په دوديزه هندوستانۍ ټولنه کي خبره داسي نه ده. هغوی په دې عقيده دي، چي د ټاگور فکر د

[1]. فيروز الغات قاموس (گرو ديو) سانسکريټ کلمې بولي. په دې ژبه کي (گرو) پير او مرشد ته وايي او (ديو) د لمانځني وړ ته وايي.

[2]. برهمو سماج د هندوانو د هغه فکري مکتب نوم دئ، چي په (۱۸۳۰م) کي ئې (راجه رام موهن رای) په بنگال کي بنسټ کښېښود.

[3]. ټهاکر کلمه په هندي ژبه کي د ديوتا (د خدای رسول)، پرماتما (د لويه اروا)، څښتن، سردار، زميندار، راجپوټ او ښاغلي معنا لري.

[4]. برهمن د هندوانو تر ټولو لوړ ذات دئ.

مذهب او فلسفې له امتزاج څخه منځ ته راغلی دئ. ټاګور چې د خپل فکر د اظهار له پاره کوم تخینک کارولی دئ، هغه ته د تصوف د ناوي (Bridal Mysticism) نوم ورکولای سو. د تصوف په دې ځانګړې ډول کې صوفي خپل ځان ناوې ګڼي او خپل ذهن او وجود خپل زوم (خدای) ته وراندي کوي. که څه هم د نوموړي په ټولو آثارو کې اپنشدي[5] خیالات او افکار لیدل کېږي، خو دغه افکار ئې په (سادهنا) اثر کې تر ټولو ډېر څرګند دي. له همدې امله د هندوستان یوه لویه طبقه هغه ته د(رشي کوي[6])او صوفي په ستر ګه ګوري.

دا چې هندوستانی قوم ټاګور ته د تقدس په ستر ګه ګوري، د دې لامل د دوی هغه فطرت دئ، چې خپلو سترو مفکرینو ته د سپېڅلتیا چپنه ور په اوږو کوي. دوی له ټاګور سره هم همدا خوی وپاله، ځکه ئې مینه وال (ګرو دیو)بولي.

نوموړی برهمن وو، له دې امله له کوچنیوالي څخه هغه ته د اپنشدونو تعلیم ورکړل سو او هغه د خپل روحاني سفر پر مهال ټول عمر له دې اړخه لارښوونه تر لاسه کوله. د ټاګور په آثارو کې چې د خدای (ج) په اړه کوم تصور لیدل کېږي، دا هغه تصور دئ، چې له ویدونو څخه اپنشدونوته تللی دئ. د ویدونو خدای د اسلام او مسیحیت له خدای(ج) څخه په دې توپیر لري، چې د دوی خدای په هر شي کې خپور دئ او له هر ډول تشخُصاو وضاحت څخه لوړ دئ. په هندو مذهب کې د مشهورو خدایانو (دیوتاوو) په ګډون هر شی په اصل کې د ازلي حقیقت یعني برهمن (خدای) د وجود لنډ مهاله او مځکني (ارضي) مظاهر دي. ټاګور په هندوایزم کې د وجود، شعور او مکتي[7] په درې ګونې (تثلیت) اصطلاح کې له خدای (برهما) سره د انسان اړیکه بیان کړه او دا ئې د هندوایزم موخه وګڼله. د اپنشدونو په بنسټیزه فلسفه کې هم د دې اصل روح موجود دئ. ټاګور د اپنشدونو په اړه خپل ځانګړي نظریاتپه خپل اثر (سادهنا) کې بیان کړي دي. د سادهنا اصطلاح په هندي کې د ژوند او عمل د طرز په معنا کارېږي. د سادهنا له مطالعې څخه ښکاري، چې ټاګور له اپنشدونو څخه څونده اغېزمن دئ.

که څه هم د ټاګور پر ادبي پانګه شاعري سیوری غوړولی دئ، خو نوموړي ناولونه، لنډې کیسې، سفرنامې، ډرامې او مقالې هم لیکلې دي. د هغه د لیکلو سندرو شمېر تر دوو زرو اوړي. دا سندرې په بنګالي ادب کې تر دې اندازې لوړ مقام لري، چې د سندرو دا ژانر ئې لا د رابندر سنګیت په نامه نومولی دئ. له دې سندرو سره د محبوبیت اندازه تر دې حده رسېدلې ده، چې په هندوستاني بنګال (غربي بنګال) او بنګله دېش (چې مسلمانان په کښې اکثریت دي) کې د فرهنګي میراث په ستر ګه ورته کتل کېږي. ډېر رابندر سنګیتونه

---

[5]. اپنشدونه د هندوانو هغه مذهبي کتابونه چې د زړونو د دید مسایل په کې لیکلي دي.

[6]. فیروز الغات قاموس د رشي کوي معناوي عابد او زاهد راوړي دي.

[7]. د مکتي معنا ما په خپل قاموس کي پیدا نه کړه. (ژباړن)

د دانتهايي لوړي ميني او تصوفي ښکلا نمونې دي. د بنګال پر اخلاقياتي اړخ د ټاګور اثر دونده ژور دئ، چې د نړۍ په ژبو کې ئې بل مثال يوازې پر انګرېزانو (هغه کسان چې انګرېزي ادب لولي) د شکسپير اغېز يادولای سو، خو هغه هم تر دې يو څه لږ.

د رابندر نات ټاګور نيکه (دوار نات) په عربي او فارسي ژبه کې د پوهې شهرت درلود. داچې د دوی په کورنۍ کې د سنسکريټ او کلاسيکو هندي کتابونو د ژوري مطالعې تر څنګ په اسلامي رواياتو او فارسي ادب باندې د پوهېدني لړۍ له نسلونو، نسلونو څخه را روانه وه، ځکه نو عجيبه نه ده، چې د نوموړي په ليکنو کې د برصغير د بېلابېلو سيمو د تمدنونو څرکونه ليدل کېږي.

ټاګور له نظم او نثر دواړو څخه د مختلفو پيغامونو د ابلاغ له پاره کار واخيست. د ده په نثر کې د ټولنيزو پوښتنو، سياسي افکارو او ښوونيزو نظرياتو تر څنګ د جهاني ورورولۍ څرکونه ليدل کېږي. البته په شاعرۍ کې ئې بيا د مذهبيت او روحانيت تر څنګ د فطرت او ژوند د سُرور بيان او له دې سُرور څخه زېږېدونکې خوښي ليدل کېږي. د ده په آثارو کې چې کومه سرمستي او سُرور ليدل کېږي، د دوی رېښې ډېر کله باطني وي.

په ادبي تاريخ کې د ټاګور ارزښت له دې خبري څخه ښه څرګندېږي، چې هندوستان او بنګله دېش د ده دوې سندري د خپلو ملي سرودونو په توګه منلي دي. په (۱۹۱۳م) کې نوموړي ته د ګيتانجلي (Gitanjali) پر انګرېزي ترجمه نوبل جايزه ورکړه سوه. دا ترجمه خپله ټاګور کړې وه. داسې ويل کېږي، چې ښاغلي ايېټس (Yeats) نوموړی دې ترجمې ته تشويق کړی وو.

ټاګور په ابتدا کې د هندوستان پر قومي (ناسوناليستي) غورځنګونو باندې ژور اغېز کړی وو، خو وروسته چې هغوی خپله لار بدله کړه، نو دی ورڅخه ګوښه سو. کله چې په (۱۹۱۹م) کې د پنجاب د جليانواله په عام وژنه کې (۳۵۰) بې ګناه ښاريان ووژل سول، نو ټاګور تر ټولو مخکې د غاو (احتجاج) په توګه د انګرېز فوج له لوري ورکړل سوی، لقب (سر) ور مسترد کړ.

د ټاګور له مهمو کارونو څخه يو هم د وشوا بهارتي (VisvaBharati) پوهنتون بنسټ ايښوونه وه. په دغه پوهنتون کې هغه ټول ښوونځي (وديالونه) هم شامل ول، چې نوموړي د خپلو ښوونيزو افکارو سره سم د ښووني او روزني د ورکړي په منظور جوړ کړي ول. ټاګور په کوچنيوالي کې په خورا خسته کنو ښوونځيو کې درس ويلی وو. هغه د دې ښوونځيو د بد خونده ډسپلين او خسته کن چاپېريال څخه ډېر زړه توری وو. نوموړي په هندوستان کې د برتانيې له لوري رامنځ ته کړی، ښوونيز نظام مصنوعي ګاڼه او په دې عقيده وو، چې دا نظام د کتابونو په مخانيکي لوستلو کې راګير دئ او له فطرت سره د تعامل او هم آهنګۍ ظرفيتپه کښې نسته. هغه په دې باور وو، چې په دغه ښوونيز نظام کې د تاندو هندوستاني اذهانو د احساس قوت د مړيني له ګواښ سره مخ دئ. که څه هم نوموړي د خپلو سرپرستانو د درناوي له امله څه ناڅه رسمي

تعلیم هم وکړ، خو د فکري لوري په ټاکنه کې ئې تر بلې هرې ښوونیزې ادارې زیات خپل کورني کتابتون مهم رول ادا کړ. داچې نوموړی له مروج ښوونیز نظام سره مخالف وو، نو له دې امله ئې د غربي بنګال د شانتي نکتین (Santinikketan) په سیمه کې برهمچاري آشرم جوړ کړ. د لرغوني ویدي زمانې په هندوستان کې برهمچاري هغه چاته ویل کېدل، چې د (اچاري) یعني (ګرو) تر لارښوونې لاندې د علم په لټه کې وو. ټاګور پوره هڅه کوله، چې دا اداره په معاصر وخت کې هم ویدي ښوونیز نظام نمونه وګرځي. په دې کار کې ئې پلار هم مرسته ورسره کوله. هغه د خپلې کرنیزې مځکې یوه لویه ټوټه د دې کار له پاره وقف کړه. د وخت په تېرېدو سره دغه ښوونیز مرکز په داسې پوهنتون بدل سو، چې دېرش څانګې ئې درلودې. د هندوستان تر خپلواکۍ وروسته د دې ادارې چارې دولت په خپل واک کې واخیستې. په (۱۹۲۲م) کې دآسکر جایزې ګټونکی فلمساز ستیه جیت رای (Satyajit Ray)، په (۱۹۹۸م) کې د اقتصاد په برخه کې د نوبل جایزې ګټونکی امرتاسین (Amartya Sen) او د هندوستان پخوانۍ صدراعظمه اندرا ګاندي هغه اشخاص دي، چې له دې ادارې څخه فارغ سوي دي.

ټاګور د خپل وخت له نړۍ والو تحریکونو څخه هم اغېزمن سو او د بېلابېلو قومونو او هیوادونو تر منځ پر جګړو ئې خواشیني هم څرګنده کړه. د نوموړي دا کار کوم سیاسي هدف نه درلود، بلکې یوازې د سولې د غوښتنې په خاطر وو. هغه د ټول انسانیت له پاره د امن غوښتونکی وو. ټاګور د خپل پوهنتون له پاره د مرستې د جلب په خاطر څو هیوادونو ته سفرونه وکړل او په دې ډول د بېلابېلو اولسونو د خوی او بوی سره د اشنایۍ موقعه په لاس ورغله. په نړۍ وال ادب کې د شرق او غرب پرتلنه ځانګړی ژانر ګڼل کېږي. ټاګور د دې ژانر نومیالی مینه وال او یا ښايي بنسټګر وو. ده په خپلو لیکنو کې د ریاډ کپلنګ غوندې قوم پرستو ادبیانو سخت مخالفت وکړ.

په اتیایمه لسیزه کې د نوموړي د شاعرۍ څو مجموعې چاپ سوې. په (۱۸۹۰م) کې ئې هغه مجموعه چاپ سوه، چې د ده د تخلیقي استعداد بشپړ استازیتوب ئې کاوه. په دې مجموعه کې د ټاګور تر ټولو مشهور نظمونه شامل ول. ډېرو بنګالیانو ته د دې مجموعې ځیني نظمونه د شکل له پلوه نا دوده و ایسېده. په دې کتاب کې پر ټولنیزو او سیاسي ارزښتونو باندې نیوکې هم تر سترګو کېږي. په (۱۸۹۱م) کې ټاګور د خپل ابايي جایداد د چارو د سنبالولو له پاره د مشرقي بنګال هغې سیمې ته ولاړ، چې اوس د بنګله دېش په نامه یادېږي. نوموړي لس کاله په شهزاد پور کې تېر کړل. په دې دوران کې ټاګور څو ځله په هغو کورونو کې واوسېد، چې د پدم پر سمندر په چلېدونکو کښتیو کې جوړ سوي ول. په دې ډول هغه د دې موقعه تر لاسه کړه، چې د دې سیمې د خوارو کلیوالو ژوند له نژدې څخه ووینې. د ده په لیکنو کې چې د خوارو بنګالیانو د غربت او پسماندګۍ

کوم ژوندي تصویرونه او له هغوی سره له سوزه ډکه همدردي لیدل کېږي، دا د هغې مستقیمې لیدنې نتیجه ده. ټاګور د ډېکلیوالو د لویو او کوچنیو محرومیتونو ډک ژوند په ډېر اغېزمن ډول بیان کړ. په دې کیسو کې د تقدیر، ستم ظرفیو او کړاونو بیان په خورا ژور ډول شوې وهي. د ستیه جیت غوندي لوی فلم جوړونکي او ډایرکټر په خورا زیار او زحمت سره دغه احساسات د سیمنا پر زرینه پرده وړاندي کړل. ټاګور د بنګال له فطري منظرو سره مینه درلوده. همدا لامل دئ، چې په شاعرۍ کې ئې د پدم د سمندر منظرې په وار، وار لیدل کېږي. په دغو کلونو کې د هغه څو مجموعې چاپ سوې. په دې ټولګو کې نېسونارتاري (Sonar Tari) نومې مجموعه ډېره مهمه ده. دا مجموعه په (۱۸۹۴م) کې چاپ سوه. په (۱۸۹۲م) کې ئې د ډرامو مجموعه د چترنګدا (Chitrangada) په نامه چاپ سوه. د ټاګور د شاعرۍ او په ځانګړي ډول د هغه تر دوو زرو زیاتو نظمونو ترجمه تقریباً ناممکنه ده. د هغه سندرې د بنګالیانو په ټولو طبقو کې محبوبیت لري.

په (۱۹۰۱م) کې ټاګور د هندوستاني او غربي نړۍ د ښوونیزو افکارو پر بنسټ یو ښوونځی پرانیست. دغه ښوونځی وروسته په (۱۹۲۱م) کې په وشوا بهارتي پوهنتون (VisvaBaharati University) واوښت. د (۱۹۰۱م) او (۱۹۰۷م) کلونو تر منځ نوموړی د خپلې مېرمنې او دوو اولادونو د مړینې له غمجنو پېښو سره مخ سو. د هغه د دې مهال په شاعرۍ کې د دې غم څرګونه لیدل کېږي.

دا شاعري غرب ته د ګیتانجلي (Gitanjali) په نامه ورسېده. ټاګور د خپلو بېلابېلو مذهبي نظمونو ترجمې هم له دې کتاب سره مل کړې. دغه کتاب د نامتو شاعر ډبلیو بي ییټس (W.B. Yeats) له خوا وستایل سو او په (۱۹۱۳م) کي ئې نوبل ادبي جایزه ترلاسه کړه. په (۱۹۱۵م) کې ټاګور ته د (سر) لقب ورکړه سو. دغه لقب نوموړي په (۱۹۱۹م) کې د امرتسر د جلیانواله د عام وژنې پر سر د احتجاج په توګه رد کړ.

له (۱۹۱۲م) څخه وروسته ټاګور په اروپا، امریکا او شرقي اسیا کې اوږده استوګنه وکړه، پر بېلابېلو موضوعاتو ئې ویناوې (لکچرونه) وکړې او خپله شاعري ئې خلکو ته واوروله. که څه هم د هغه ناولونه د نوموړي تر نظمونو او لنډو کیسو کښته دي، خو صرف نظر کېدای نه سي. ګورا (Gora) ئې هغه ناول دئ، چې په ځانګړي ډول ئې ښه شهرت ترلاسه کړ. د شلمې پېړۍ د دوهمې لسیزې په اواخرو کې د ټاګور عمر د اویا کلونو په شاوخوا کې وو، چې انځورګرۍ ئې پیل کړه او د معاصر هندوستان د لومړي صف په انځورګران کې راغی.

**ګیتانجلي** (Gitanjali):

دا د ټاګور د مشهورې شاعرۍ مجموعه ده. دا مجموعه په لومړي پلا په (۱۹۱۰م) کې چاپ سوه. ټاګور د دې مجموعې نظمونه انګرېزي ته ترجمه کړه. دا ژباړه په (۱۹۱۲م) کې د (Gitanjali: Song Offerings) په نامه چاپ سوه. ژباړه د ادبي ټوټو یا نثري نظم په ډول سوې ده او ولیم بټلر ییټس (William

Butler Yeats) سریزه پر لیکلې ده. ټاګور دا نظمونه د منځنیو پېړیو د هغې شاعرۍ د نمونې په توګه وړاندې کړه، چې په هغه وخت کې به له نڅا سره د سندرو په شکل ویل کېده. د دې سندرو له پاره د موسیقۍ کمپوزونه هم خپله ټاګور جوړ کړل. د مجموعې په ځینو نظمونو کې د روحانیت او نفسیاتي خواهشاتو تر منځ مجادله بیان سوې ده، خو ډېر نظمونه د مینې پر موضوع راڅرخي. د مجموعې پر ټولو نظمونو باندې نرم سُر غوړېدلی دئ. که څه هم دې مجموعې له نوموړي سره د نوبل جایزې په ګټلو کې مرکزي رول تر سره کړ، خو ادبپوهان پر دې خبره په یوه خوله نه دي، چې دا د ټاګور تر ټولو غوره او نماینده اثر دئ.

**مناسي** (Manasi):

د رابندر نات ټاګور د نظمونو دا مجموعه لومړی پلا په (۱۸۹۰م) کې چاپ سوه. د مجموعې د انګرېزي نوم معنا (د ذهن تخلیق) وو. د دې کتاب د چاپ پر وخت د ټاګور عمر (۲۹) کاله وو. د دې اثر له نظمونو څخه داسې ښکاري، چې شاعر د خپل هنر کمال ته رسېدلی دئ، خو د مجموعې د ډېرو نظمونو په مرکزي خیال کې ئې د ځوانۍ د مهال رومانویت لیدل کېږي. نوموړي که د فطرت خبره کړې ده، که د محبت، په هر ځای کې ئې دا دوه څنګ پر څنګ ساتلي دي. د دې مجموعې ځیني نظمونه د نفسي خواهشاتو د غندنې په اړه دي او په ځینو کې د بنګالي ټولنې پر تنګ نظرۍ باندې نقد لیدل کېږي. دا مجموعه د ټاګور په هغو لومړنیو مجموعو کې شمېرل کېږي، چې ایزرا پاونډ (Ezra Pound) او ډبلیو بي ییټس ئې اغېزمن کړل.

**ټاګور او هندوستان:**

د بنګالي ادب په زر کلن تاریخ کې د ټاګور لوړ او ستر شخصیت ډېر ممتاز ځای لري. د ده سندرې اوس هم د ملیونونو بنګالیانو پر شونډو باندې زمزمه کېږي، خو ټاګور چې په امریکا او اروپا کې کوم زوږ رامنځ ته کړی وو، هغه اوس تر ډېره حده له منځه تللی دئ. د ګیتانجلي انګرېزي ترجمه د (۱۹۱۳م) کال په مارچ کې په لندن کې چاپ سوې وه او په نومبر کې د جایزې تر اعلانه لس واري چاپ سوې وه. که څوک په هغه وخت کې د ټاګور محبوبیت په نظر کې ونیسي، نو ویلای سي، چې اوس په غرب کې د ټاګور مینه وال نسته. ګراهم ګرین (Graham Greene) په (۱۹۳۷م) کې لا ویلي ول، چې: "د رابندر نات ټاګور په اړه زه دونده ویلای سم، چې فکر نه کوم، له ښاغلي ییټس پرته دې، کوم بل شخص د ده نظمونو ته دونده ارزښت ورکړی وي".

په بنګالي ادب کې د ټاګور د مقام او په نوره نړۍ کې د هغه د محبوبیت د زوال پر تله ډېره په زړه پورې ده، خو تر دې لا دا ډېره په زړه پورې ده، چې د بنګالي ادب مینه وال له فکري پلوه هغه خپل معاصر ګڼي او د هغه کلام څواړخیز بولي. په داسې حال کې چې په غرب کې هغه ته د یو داسې روحانیت پسنده په سترګه کتل کېږي، چې خیال او کلام ئې دواړه سولېدلي دي. په دې کې شک نسته، چې د ټاګور لومړنیو ستایونکو ییټس (Yeats) او ایزرا پاونډ پر هغه د تصوف شپول وغوړاوه او

په دې ډول ئې په غرب کې د هغه خرڅلاو ته لاره هواره کړه. په (۱۹۴۱م) کې چې ټاګور مړ سو، نو څو نور ستایونکي ئې هم پیدا کړل. په دې کسانو کې اینا اخماتوف (Anna Akhmatov) هم شامل وو. نوموړې په اوبایمه لسیزه کې د هغه څو نظمونه روسي ته ترجمه کړل. اخماتوف وایي، رابندر نات ټاګور د شاعرۍ هغه آبشار وو، چې د خپل قوت ډېره برخه ئې له هندوایزم او ګنګا څخه ترلاسه کاوه. بنایي د اخماتوف نظر سم وي، خو پر دې هر څه سربېره ټاګور د شرقي هندوستان په هندوانو کې هغونده محبوبیت لري، لکه د بنګله دېش په بنګالي مسلمانانو کې. د بنګله دېش مسلمانان هم دا محسوسوي چې ټاګور د دوی د افکارو استازیتوب کوي. د بنګله دېش ملي سرود (امارسونار بنګله) یعني زما طلایي بنګال د ټاګور شعر دئ. هغه کسان چې نن د مسلمانانو، هندوانو او غربیانو په بېلابېلو تمدنونو کې اوسېږي، هغو ته به دا خبره یو څه عجیبه ښکاره سي، چې ټاګور خپل کورنی دود او دستور د هندوانو، مسلمانانو او برتانوي تمدنونو له امتزاج څخه جوړ کړی وو. د هغه انځورګري چې د تجرید او فطرت د ښکلي امتزاج استازیتوب کوي، ډېر وروسته وستایل سوه. د هغه لیکني د ادب، تمدن، ټولنیزو بدلونونو، مذهبي عقایدو، نرۍ والو اړیکو او فلسفي تحلیلونو پر موضوعاتو راڅرخي.

د هندوستان د چارو شنونکي رابندر نات ټاګور او موهن داس ګاندي د معاصر هندوستان د لومړي صف په مفکرینو کې شمېري. د (۱۹۴۱م) د اګست پر ۷ مه چې جواهر لال نهرو د رابندر نات ټاګور د مړیني خبر واورېد، نو له محبس څخه ئې په یو لیک ولیکل: "که څه هم د ګاندي او ټاګور شخصیتونه یو له بل څخه ډېر جلا ول، خو دواړو د هندوستان استازیتوب کاوه او دواړه د سترو هندوستانیانو په لیست کې شامل دي. د دوی عظمت په یوې خاصي ځانګړني پوري محدود نه دئ، بلکي د دوی د شخصیت په ګلیت پوري اړه لري. زه په دې نېکمرغه یم، چې له دوی دواړو سره د نژدې پاته کېدو موقعه مې ترلاسه کړه."

سره له دې چې ټاګور د ګاندي یو لوی مداح وو، خو د قوم پرستۍ، حب وطنۍ، استدلال، تعقل، پر ټولنه باندي د کلتوري اغېز د منلو او اچولو پر ارزښت او د ټولنیز او اقتصادي پرمختګ پر مسایلو ئې له هغه سره سخت اختلاف درلود. دا یو حقیقت دئ، چې د ګاندي په پرتله ټاګور ډېر تعقل پسنده وو. په ده کې د پورتنیو مسایلو د علمي تحلیل قوت تر هغه ډېر وو. البته نوموړی د دې ټولو مخالفتونو سره، سره د یو سیاستمدار په توګه د ګاندي استعداد ته قایل وو. همدا دی وو، چې د ګاندي له پاره ئې د (مهاتما) لقب وړاندي کړ او په خلکو کې ئې محبوب کړ. سره له دې چې هغه یو خوشبین انسان وو، خو د هندوستان له راتلونکي څخه مایوسه سوی وو.

د ټاګور په عقیده خلکو ته د ژوند کولو او په آزاده توګه د غور او فکر کولو زمینه برابرول تر ټولو ستر انساني شرافت وو. د ارتجاعي هندوانو برعکس هغه د مذهب په نامه د تفرقې څخه سخته کرکه درلوده. کله، کله به هغه فکر کاوه، چې قوم پرستي هم انسانان پر ډلو ټپلو وېشي. ځیني وختونه به نوموړي د ګاندي پر قوم پرستي باندي هم شک کاوه، خو د دې معنا دا نه ده، چې ټاګور له هندوستاني سیاست څخه بېخي بې پرې وو. نوموړي په (۱۹۰۵م) کې د بنګال د جلا کېدو او په (۱۹۱۹م) کې د جلیانواله د عام وژني د غندني له پاره له هري ممکني لاري څخه ګټه پورته کړه.

لیکوال: زنه فین



مترجم: واحد فقیري

# د سقراط تلپاته نظریات

دوهم کتاب

نهم فصل

**سقراط و خپل ملګري کریتو ته دا ور زده کړل چي څرنګه له هغو جاسوسانو څخه ځان خلاص کړي چي د کریتو له ښه سلوک او طبع څخه ئې سؤ استفاده کوله**

یوه ورځ داسي پېښه سوه چي کله کریتو سقراط ولید، هغه ته ئې شکایت وکړ چي اوس په اتن کي د یو شخص له پاره دا ډېره ګرانه ده چي له یوې خوا هم خپل ثروت وساتي او هم دلته ارام ژوند وکي. کریتو وویل: «پر ما باندي همدا اوس داسي څو کسو عریضې کړي دي چي ما هیڅکله هغوی ته کم زیان نه دئ رسولی. دا دعوا دوی له دې کبله کړې ده، ځکه دوی په دې ښه پوهېږي چي زه نه غواړم محکمو او څارنوالانو ته ولاړ سم او ښایي د ځان د خلاصون له پاره دوی ته څه لږ پیسې ورکړم.»

سقراط و کریتو ته وویل: «ایا ته داسي سپي ساتې چي خپله رمه له لیوانو په خوندي کړې؟» کریتو په جواب کي وویل: «بلې هو، ته په دې باره کي هیڅ شک مه کوه، زه ئې لرم.»

سقراط په جواب کي ورته وویل: «ایا تا ته په کار نه ده چي ته یو داسي څوک ولرې چي ټول هغه کسان ستا څخه وشړي چي تا ته پرته له کمه موجبه ازار او زیان رسوي؟» کریتو په جواب کي وویل: «زه به ئې پر دواړو سترګو باندي قبول کړم، خو دا ېره هم لرم چي ښایي په اخر کي همدا کس هم زما پر ضد

را وپاڅېږي.» سقراط ورته وويل: «دا ولي داسي ده؟ ایا دا به ښه نه وي چي ستا غوندي د يو سړي خدمت وکړي او ستا څخه امتيازات او مرستي تر لاسه کړي، نسبت دې ته چي تا غوندي يو کس د ځان دښمن کړي؟ ته بايد په دې ښه پوه سې چي په دې ښار کي ډېر داسي خلګ سته چي ستا انډيوالي او دوستي ورته افتخار او د ډېري خوښۍ ځاى دئ».

له دې را وروسته، داسي پېښه سوه هغوى تصادفاً ارچيدموس وليد. ارچيدموس يو ښه فصيح او د چارو په مديريت کي نهايت ماهر وو. مګر په عين حال کي ارچيدموس يو خورا، مسکين او د خواري طبقې سړى وو، ځکه هغه داسي شرير او سرابښ کس نه وو چي د هري وسيلې په واسطه د نورو خلګو شيان تر لاسه کړي. حقيقت دا وو چي ارچيدموس يو صادق انسان وو او پر عدالت باندي مين کس وو. هغه له دې څخه کرکه لرله چي د نورو پر اوږو باندي ځان بډاى او قدرتمن کړي او هغه نه غوښتل چي د جاسوسۍ او غيبت په مټ ځان مشهور کي. ځکه هغه باور لاره چي هيڅ کار دونه ذليل نه دئ لکه جاسوسي او چاپلوسي چي ده، او ځيني شرير خلګ په اخته دي. له دې مجلس څخه راوروسته، کريتو تل ارچيدموس څاره او هر کله چي به کريتو ته له خپلو مځکو څخه غنم، جواري، شراب او يا هم غوړي راوړل سول، هغه به ارچيدموس ته خامخا څه ورلېږل. او کله چي به کريتو قرباني کوله، ارچيدموس ئې خامخا مېلمه کاوه، او د هغه سره ئې خورا ښه سلوک کاوه، او ښه مېلمه پالنه ئې کوله. کله چي ارچيدموس احساس وکى چي د کريتو د کور دروازه ورته تل خلاصه ده، او کله چي ورته دا معلومه سوه چي د کريتو کره ئې مدام عزت او احترام کېږي، هغه خپل نور ګرده کارونه پرې ښودل، او د کريتو د کارونو د سمولو له پاره ئې ملا وتړله. سمدستي، ارچيدموس د هغو چاپلوسانو او غوړمالانو د شخصيت او کرکټر په باب پوښتني او ګروېږني پيل کړې چا چي د کريتو پشلا د هغه بد ويل او د هغه جاسوسي ئې کوله. وروسته له څه تحقيقه، ارچيدموس دا پيدا کړه چي اکثرو دغو خلګو لوى او زيات جرمونه کړي دي، او هغوى ډېر دښمنان لري. دې واقعيتونو، ارچيدموس دې ته وهڅوى چي له هغوى څخه پر يوه باندي عريضه او دعوه وکي، او په داسي جرم ئې تورن کى چي کېداى سواى هغه ته جسماني مجازات ورکړل سي، او حتى لږترلږه څه پولي جريمه هم سي. دا سړى پوهېدى چي دوسيه ئې درنه او جدي ده او په دې هم واقف وو چي برئت نه سي تر لاسه کولاى. هغه له ټولو چمونو څخه استفاده کوله څو له ارچيدموس څخه ځان خلاص کړي. مګر ارچيدموس تر هغه وخت پوري تعقيب کى، څو هغو نورو جاسوسانو او چاپلوسانو کريتو پرې ښود او حتى ځينو خو د ځان د ژغورلو په منظور څه پيسې هم ورکړې. ارچيدموس په څو نورو برخو کي هم د کريتو کارونه په موفقيت سره تمام کړل، او دې برياليتونوبو کريتو سخت خوشحاله او راضي کړى وو. کريتو له ارچيدموس څخه داسي راضي او خوښ وو لکه چي يو شپون ښه زبردست

پاته په (۱۱۷) مخ کي

د میرویس ملګري ژباړه

# د ژوند کیسه

دا د پټېر کیسه ده، اته کلن پټېر د شرقي یورپ په یوه واړه کلي کې اوسېدی. پټېر د مور و پلار یوازینی زوی وو. ډېر ځیرک، هوښیار او ادبناکه هلک وو. له کورني ځخه نیولې د کلي تر کوچنیانو، ځوانانو او سپین ږیرو ټول ځني خوشاله ول. ښوونځي کي زده کوونکي او ښوونکي ورته حیران ول، هیڅ کله ئې کورني کار نیمګړی نه پرېښودی. هغه په لوبو، درس او مطالعه درې واړو کي ثاني نه درلود.

لنډه دا چي پټېر په کلي کي لکه نابغه داسي وو، خو یوه خرابي ئې هم لرله. هغه نیمګړتیا څه وه؟ دې کیسې ته تر راتګ وړاندي اړینه ده چي تاسي ته ووایم، دا یوازي د پټېر کیسه نه ده. په اصل کي دا زموږ د ټولو کیسه ده موږ ټول په یو ډول نه یو ډول د پټېر په څېر یو. د دې کیسې په لوست به ښایي موږ په خپل ذات کي راسره پټېر ته ورسېږو. زموږ په ذات کي موجود پټېر کومه دئ؟ دا او دې ته ورته پوښتني دي چي موږ اړ باسي تر څو د پټېر بشپړه کیسه ولولو.

پټېر یوه نیمګړتیا لرله، هغه په روڼا ورځ خوبونه لیدل. هغه د خیالونو په نړۍ کي اوسېدی کله به ئې وخت ته په وړاندي ټېله ورکړه او کله به شا ته وګرځېدی. زیاتره وخت به د فکر ټال کي سپور وو. ځان به ئې د شل کلن ښکلي ځوان په بڼه کي ولید. سپین آس ته به ئې کمچینه ورکړه او د هوا سره به ئې خبري کولې. پټېر به کله توره په لاس د جګړې لومړي خط کي ولاړ وو، کله به ئې ځان د باچا د لور مانۍ ته ورسوی د باچا لور به ئې په زور وتښتوله، شا ته به د باچاد اردو اسان په پسې ول. د اسانو د پښو ګرد به ټوله سیمه نیولې وه. پټېر به کله پانګوال سو ځلور پنځه میرزایان به ورسره ول، هغه به د خیال په نړۍ کي ځان رابن هوډ کړ، شتمن به ئې لوټل او پر غریبو به ئې پیسې وېشلې. د بوډالټر باچا په څېر به د مرګ پر بستره پروت وو اوړدې ساوي به ئې اخیستلې، زامن او لمسیان به ئې د وصیت اورېدلو له پاره پر راټول ول. پټېر د وخت په دې لوبه کي چي شاتګ او پرمختګ پکښې وو تر ټولو ښه لوبغاړی وو پټېر ډېر ځیرک وو خو همدا یوه نیمګړتیا ئې لرله. هیڅکله به ئې ذهن او وجود په یوه نړۍ کي نه اوسېدل. د هغه ذهن به هیڅ وخت هلته نه وو چیري چي به دی خپله اوسېدی. د پټېر یوه ستره هیله همدا وه چي داسي یوه اله ومومي چي په مټ ئې وخت په خپل واک کي ولري چي زړه ئې غواړي لس کاله وړاندي ولاړ سي او که زړه ئې وسي بیرته شل کاله شا ته

ولاړ سي. پټير په دې هيله شپې و ورځې سبا کولې.

د خدای (ج) کارونه دي پټير يو ورځ په ځنګل کي روان وو چي ناڅاپه راولوېد او بې هوښه سو. څه وخت چي پر هوښ راغی نو سر ته ئې يوه بوډۍ ناسته وه، دا د وخت بوډۍ وه پټير ته ئې وويل د ژوند تر ټولو ستر آرمان دي څه دئ؟

پټير ورته کړه: غواړم چي په خپله خوښه ژوند شا و مخ ته يوسم، بوډۍ په خندا سوه ويل، کم عقله ژوند د رود په څېر وړاندي روان وي، شا ته هيڅکله نه ګرځي، زه به درته د ژوند پر مخ ټېله کولو چل وښيم، پټير هم ورسره ومنله. بوډۍ ورته يو داسي توپ ورکړ چي لاندي ئې تار څوړند وو، ويل ئې دا ستا د ژوند په څېر اوږد تار دئ کله چي دي زړه وي نو د ځان خوا ته ئې کش کړه که هر څومره زور ورسره وکړې په هغه اندازه به دي وخت مخ ته ولاړ سي. بوډۍ ورکه سوه پټير تار لږ را کش کړ، ترررررر، ترررررررر غږ پورته سو، وخت لس کاله وړاندي ولاړ، اوس نو پټير ښکلی اتلس کلن ځوان وو، د کلي نجونو به د دراوزې تر چولو ورته کتل ورځ به ئې په خوب او شپه د يارانو سره په مجلسونو تېره کړه. هغه ليدل چي مور و پلار ئې ضعيفه سوي، کلی غټ سوی وو او په خبره پوه خلګ ټول کوچېدلي ول.

پټير څو مياشتي لا په دې چوکاټ کي ژوند وکړ، ستړی سو ولاړ او له سندوخه ئې توپ راوايست، تار ئې را کش کړ بيا لس کاله وړاندي لاړ اوس نو هغه اته ويشت کلن وو. په ژوند کي د بدلون غوښتونکی وو. مور و پلار ئې ناروغه ول، پخوانيو ملګرو مخ ور څخه اړولی وو پټير به ډېر وخت کور کي تېروی. مور ئې د هډوکو په ناروغۍ اخته وه او پلار ئې د زړه حملې تکاني کړی وو، مځکي او جايداد ته ئې پوروړي ناست ول. پټير غوښتل چي يو ځای دنده پيدا کړي خو نالوستي ته چا دنده نه ورکوله، سرمايه او پيسې ورسره نه وې پاته چي کاروبار په وکړي. سياست ته ئې مخه کړه هلته هم له ناکامۍ سره مخ سو، نور نو پټير ټوله ورځ د کلي په کوڅو کي تېرول، نه چا ورته د سړي په سترګه کتل او نه ئې چا خبره اورېدل.

پټير نه غوښتل چي د ژوند په دې پړاو کي ځان ووينې، توپ ئې راوايست تار ئې کش کړ او لس کاله نور وړاندي ولاړی اته دېرشو ته ئې ځان ورسوی. هغه اوس د يوې کورنۍ ښښتن وو، په کلي کي ئې د ريټا نومي نجلۍ سره واده شوی وو، دوه ماشومان ئې لرل يو يې زوی او بله يې لور کۍ وه. د سر ورېښتان ئې کم او ټېکونه يې سپين سوي ول، مور ئې دوه کاله وړاندي وفات سوې وه، پلار ئې د مرګ پر بستر پروت وو خپله لويه کلا ئې له لاسه ورکړې او په يوه وړوکي کور کي اوسېدی. ښځي به ئې نخود او لوبيا ورپخول او پټير به د کلي پر ماشومانو خرڅول. بس همدا ئې ژوند وو. ډارېدلي پټير دا ځلي په زوره تار را کش کړ او شل کاله مخ ته ولاړ، هغه اوس د اته پنځوسو کالو وو، ماشومان ئې ځوانان سوي او ښار ته تللي ول. د ښځي ښښتورګي ئې له کاره لوېدلي ول ټوله ورځ به ئې په دردونو تېرول. پر زياتره پخواني کليوالو ئې خاوري اړولي وې، کلي د ښار بڼه غوره کړې وه، ګڼه ګوڼه، زوږ او شور به ډېر وو، غسل خانه کي تر ښويېدلو وروسته يې د ورانه هډوکي زيان ليدلی وو اوس

به په لاره لکه گوډ کوړ کوړ روان وو، زوی به ئې ورته له ښاره هره میاشت یو څه پیسې رالېږلې، که به ئې نه راولېږلې نو به ښځې او خاوند کچالو او بو کې پخول او گوزاره به ئې په کوله. د لمر لوېدلو سره سم به تیارې د وړوکې کور په انگړ کې خپرې سوې، تر سهاره به یوازې د دوو انسانانو د ټوخي اوازونه اورېدل کېدل. پټیر له دې ژونده هم ستړی سو، په توپ څوړند تار ئې بیا کش کړ او لس کاله نور مخکې ولاړی، پټیر اته شپېته کلن سو ښځه یې وفات سوې وه، خپل وړوکی کور ئې هم له لاسه ورکړی وو هغه په زړنتون کې اوسېدی، په ملگرو، دوستانو او همزولو ئې د مرگ بلا روړده سوې وه او ټول ئې خوړلي ول، هغه د سږو په ناروغي اخته وو ټوله ورځ به ئې خوله له بلغمو ډکه وه. لوږه ئې کمه شوې وه که به وږی هم وو نو د خوراک څه به نه ول او که به د خوراک له پاره څه پیدا سول نو غاښونه ئې نه ول چې دوډۍ ورباندې وخوري او چې و به ئې خوړل نو هاضمه به ئې خرابه سوه او د نس درد به ورته پیدا سو، ژوندون د ډار او وېرې انځور خپل کړی وو، پټیر به ټوله ورځ یوازې ناست وو هغه غوښتل چې مطالعه وکړي خو سترگو ئې ملتیا نه ورسره کوله، غوښتل ئې سندرې او موسیقي واورې خو غوږو ئې کار پری ایښی وو هیڅ ئې نه اورېدل، غوښتل ئې تېر یادونه ورته یاد سي خو یاداشت ئې دومره کمزوری وو چې هیڅ ئې نه یادېدل.

یوه ورځ پټیر له خپل ځانه وپوښتل، پټیره! په ژوند کې دې تلپاته او یادگاري شېبې کومې وې؟ هغه سمدستي د ذهن پر خیالي پرده د اته کلن پټیر عکس ولید، هغه د ځوانۍ او مستۍ شپې ورته یادې سوې، سترگې ئې له اوښکو ډکې سوې په رېږدېدلو لاسو ئې تار را کش کړ، خو د ژوند تار ئې نور ختم سوی وو، هغه خپل ځان د قبر پر غاړه ولید، پخوانی خاورین قبر. قبر نارې وهلې چې نه چا اوبه ورباندې شیندلې او نه چا ورباندې یادگاري جنډه درولې. پټیر یو دم پاڅېد، سترگې یې روڼې کړې، شاوخوا ئې وکتل، په هماغه ځنگله کې ناست وو، په لاس کې ئې توپ وو، مخامخ ورته د وخت بوډۍ ولاړه وه او په زوره زوره ئې خندل پټیر د توپ ورکولو په وخت کې له بوډۍ څخه پوښتنه وکړه، وخت څه دئ؟ بوډۍ بیا وخندل ویل ئې: وخت همدا نن دئ، همدا اوسنۍ شېبه ده. بیا ئې ورڅخه د ژوند په اړه پوښتنه وکړه. بوډۍ ځواب ورکړ: ژوند له نن څخه د خوند اخیستلو نوم دئ، په همدې اوسنۍ شېبه کې د ژوند لوری وټاکئ، کم عقل دي هغه څوک چې په نن کې د تېر ژوند د رغولو هڅه کوي او یا په نن کې د راتلونکي په اړه خوبونه ویني، انسان نه خپل تېر ژوند جوړولای سي او نه راتلونکی، یوازې همدا نن دئ، هو یوازې همدا اوسنۍ شېبې دي چې موږ خوند ځنې اخیستلای سو او ورباندې لاس بري یو. ته سږ داتو کالو یې راروان کال به نهه کلن سې بیا نه شې کولای چې بېرته اتم کال ته راسې، نو پاڅه له همدې اتم کال څخه خوند واخله! د خوبونو له نړۍ څخه راووزه او همدې شته شېبې ته ژوند ورکړه، ځکه تېر وخت او راتلونکی دواړه مړي، یوازې نن دئ چې ژوندی پاتېږي نو راځه په نن کې ژوند وکړه چې تلپاته سې، د وخت بوډۍ په زوره وخندل او ورکه سوه. پټیر هم بیرته د ماشومتوب په گلورینه دره گډ سو، هغه اوس بیرته اته کلن وو.

پښوانیو وختونو ته سفر لاربنود

# رنسانس


لیکواله: انا کلېبورن «Anna Claybourne»

ژباړونکې: کریمه نعیمي/لندن


**لومړی فصل: د رنسانس په هلکه واقیعتونه**

که ځوک غواړي د اروپا پښوانیو وختونو ته سفر وکړي نو تر رنسانس بله مهمه دوره نسته. که ساعت ۵۰۰ کاله شا ته کړو نو به په اروپا کي د هنر، فېشن، موسیقۍ او پلټنې یوه نوې دوره ووینو. داسي دوره چي نوښتگرو خورا زیات نوي فکرونه او نظریې درلودې. اروپایي پلټونکو د ځمکي د کرې پر مخ نوري ځمکي موندلې. لنډه دا چي د اوسنۍ عصري نړۍ تخم د رنسانس په دوره کي کرل سوی دئ. دا هغه مهال دئ چي په مطبعه کي «لومړی چاپ سوی کتاب» تر لاسه کولای سې، د لومړي ځل له پاره په تلیسکوپ کي کتلای سې، له نابغه لیکوالانو، هنرمندانو او مهندسانو سره لیدلای سې لکه: دوینچي، مایکل انجلو او شېکسپیر.

ایټالیا د رنسانس د دورې یو مخکښ هیواد وو. خکه نو ښه دئ چي خپل سفر له دغه ځایه پیل کړو ځکه دغه ځای د تکړه ساینسپوهانو او نوښتگرو کور وو.

**رنسانس څه ته وایي؟**

د اروپا په تاریخ کي رنسانس هغې دورې ته ویل کېږي چي له ۱۴۰۰ میلادي کلونو څخه بیا تر ۱۷۰۰ میلادي کلونو په منځ کي د آزادو او نویو فکرونو غوړېدا ته موقع برابره سوه. یا په بل عبارت په دغه دوره کي یو نوی فکري غورځنگ رامنځته سو او په نتیجه کي ئې ساینس، هنر، فلسفې او ادبیاتو ډېر ښه پر مختگ وکړ. رنسانس ته د ننني ورځي د عصري پرمختگ سرچینه ویلای سو.

**د رنسانس کلمه څه مانا لري؟**

رنسانس په فرانسوي ژبه کي«بیا زېږېدني» یا «نوې والي» ته ویل کېږي. The "Renaissance French for "rebirth» دغي دورې ته د رنسانس یا بیا زېږېدني نوم ولي ورکړه سوی دئ؟

دې دورې ته رنسانس ځکه ویل کېږي چي خلکو په دغو کلونو کي پر پښوانیو نظریو یو ځل بیا فکر وکړ. د مثال په ډول: مخکي خلکو فکر کاوه چي ځمکه هواره ده او که څوک پر یو لوري ولاړ سي یا سفر وکړي نو د ځمکي څوکي ته به رسېږي او لاندي به ولوېږي. پر دې نظریه یو ځل بیا فکر وسو. تر تجربو او مطالعو وروسته ورته معلومه سوه چي دا نظریه غلطه وه. ځمکه هواره نه ده او نه هم ځمکه د کایناتو مرکز دئ لکه دوی چي مخکي

فکر کړی وو.

**رنسانس څنګه رامنځته سو؟**

د رنسانس را منځته کېدل څو لاملونه درلودل:

**لومړی – تجارت:**

له یوه ځایه بل ته، تګ او راتګ آسانه سو. خلکو تجارت پیل کړ او ډېر پیسه داره سول. اوس چي دوی ښې ډېري پیسې پیدا کړي وې نو ئې فکر و دې ته سو چي دا پیسې په څه شي ولګوي. د خوړلو او کورونو جوړولو تر څنګ، هغوی دغه لاسته راغلې شتمني په نورو ساعتېریو مصرفول. لکه په خپلو محفلونو کي به ئې هنرمندان راوستل، قیمتي کالي یا جامې به ئې اغوستلې، نقاشان او رسامان به ئې راوستل چي د دوی انځورونه رسم کړي. نویو اختراع سویو ساینسي وسایلو هم ګرم بازار پیدا کړی وو.

**دوهم – د چاپ اختراع:**

د کتابونو د چاپولو اختراع رامنځ ته سوه. دا مهال خلکو کولای سوای خپل نظریات او نور مهم معلومات په کتابونو کي چاپ کړي او له نورو سره ئې شریک کړي.

**دریم – پخوانۍ زمانې:**

خلکو وخت درلودی چي پخوانۍ زمانې وڅېړي. د مثال په ډول: د پخواني یونان خلکو څنګه ژوند کاوه؟ رومانیان څوک ول او چیري اوسېدل؟ څه هنرونه ئې درلودل؟

**څلرم – د قسطنطنیې ( اوسنۍ ترکیې) له منځه تلل:**

څه وخت چي قسطنطنیه له یونانیانو څخه د عثماني امپراطورۍ ولاسته ولوېده نو د یونان ګڼ شمېر عالمان له خپلو زده کړو او نویو فکرونو سره ایټالیا ته ستانه سول.

**پنځم - ښارونه:**

ګڼ شمېر خلک له کلیو څخه ښارونو ته کډه سول. په ښارونو کي کار پیدا کول آسانه وو. ښه پیسه ګټل کېده. خلکو به یو له بل سره لیدل، کنسرټونه به ئې جوړول، خپل فکرونه او نظریې به ئې سره شریکولې، ودانۍ ئې آبادولې او پوهنتونونه ئې جوړول.

**شپږم - هیومانیزم:**

د خپلو تجربو او پوهي پر بنسټ د نړۍ په هکله پوهېدلو ته هیومانیزم ویل کېږي. مانا دا چي خلکو نور پر هغو زړو افکارو تکیه نه کوله چي د دوی له تجربو سره په ټکر کي راتلل. دوی ته مذهبي قوانین او فکرونه نور مهم نه ول. دوی به له خپلو تجربو څخه نتیجه اخیستل او تاریخي پېښې به ئې څېړلې.

**د رنسانس په دوره کي کوم ښار په کوم هیواد کي ډېر پر مختللی وو؟**

دغه مهال تر ټولو پر مختللی ښار فلورنس (له لاتین څخه اخیستل سوی، مانا غوړېدل) نومېدی. د ارنو د دریاب پر غاړه پروت دغه ښکلی ښار د ایټالیا په شمال کي موقعیت درلود چي د تجارت له برکته ئې خورا زیات پرمختګ کړی وو.

**تجارت په ایټالیا کي څنګه وده وکړه؟**

ایټالیا چي د موزې شکل لري د مدیترانې په سمندر کي داسي موقعیت لري چي له آسیا او افریقا څخه اروپا ته د راداخلېدو دروازه سوه. ټوله تجارت له اروپا څخه آسیا او

افریقا ته د دغي دروازې له خوا تر سره کېدی. ځکه نو تجارت په دغه هیواد کي ښه پرمختګ وکړ.

**د ایټالیا شتمنو خلکو پیسې په څه شي خرڅولې؟**

په دې وختونو کي د ایټالیا شتمونو تجارانو او د بانکونو خاوندانو خپلي پیسې په هنر، کتاب، موسیقۍ لګولې او هم ئې ښایستې ودانۍ جوړولې. ځکه نو د رنسانس په دوره کي هنر، ساینس، موسیقۍ او د کتابونو چاپ ډېره وده وکړه.

**ایټالیا بل څه کمال درلود؟**

ایټالیا د پخوانیو رومانیانو کور وو. ځکه نو د دې دورې لیکوالان او د هنر خاوندان د پخوانیو رومانیانو له ژوند او هنر څخه الهام اخیستی. د هغو هنرونه به ئې څېړل او تاریخي آثار به ئې پلټل.

**د ایټالیا د فلورنس ښار ته پیسې له کومو ځایونو راتلې؟**

د فلورنس په ښار کي د وړیو او نورو شیانو فابرېکي وې او هم ئې ښه بانکونه درلودل چي له دې لاري زیاته شتمني راتله. په دې ښار کي یوه لویه کلیسا وه چي خورا غټه ګومبته ئې درلوده. دا کلیسا اوس هم په همدې ښار کي ده او خلک ئې کتلو ته ورځي.

**آیا د رنسانس دوره یوازي په ایټالیا کي وه؟**

رنسانس تر ایټالیا پوري محدود نه وو او نورو هېوادونو ته لکه انګلستان، اسپانیا او پرتګال هم غځېدلی وو.

په انګلستان کي د «اتم هنري» د پاچهۍ دوره وه. د ویلیم شېکسپیرد هنر او ادبیاتو د ننداري بازار تود وو. له اسپانیا او پرتګال څخه د نوري نړۍ د پلټولو په نیت کښتیو او پلټونکو حرکت کاوه.

**آیا د رنسانس د وخت جوړي سوي نقاشۍ اوس هم سته؟**

په انګستان کي د لندن په مشهوره ګېلري کي چي د نشنل ګېلري یا ملي نندارتون (National Gallery) په نامه یادېږي، د هغه وخت جوړ سوي تصویرونه او تابلووي ځړېږي.

په دې نندارتون کي دننه د عکس اخیستلو اجازه نسته. خو که دي رسامي زده وي نو کولای سې د ننه په نندارتون کي پر یوه چوکۍ کښېنې او د خپلي خوښي تابلو رسم کړې.

**کومو خلکو خپل د انځور جوړول خوښول؟**

د رنسانس شتمنو کورنیو د خپل ځان تابلووي جوړولې. مانا دا چي دوی به نقاش ته پیسې ورکولې او د جګو دېوالونو په اندازه به ئې د دوی تصویرنه نقاشي کول. ځیني وختونه به نقاش پر زینه ورته ولاړ وو او تصویر به ئې جوړاوه.

## دوهم فصل
## ورځنی ژوند

د رنسانس د دورې خلکو ډېر له خونده ډک ژوند درلود. چي لږ و ډېري پیسې به دي درلودې نو دي کولای سواې چي ښه کالي ځانته رانیسي. داسي کالي چي تازه له نورو ښارونو راغلي وي. په میلمستیاوو کي ښه خوندور خواړه پاخه کړې، نوي اختراع سوي ساینسي وسایل رانیسې. خلکو به د ښار د

شتمنو کورنیو پر حالاتو او اړیکو خپل مجلسونه ګرمول. خو پر خپلو خبرو ډېر پام په کار وو، پر خلکو حق ناحق تور هم تړل کېدی.

په دې دوره کې ېېره له خپله سیاله په کار وه. که به د سیال مزاج درته خراپ سو نو یا به ئې زهر در کول او یا به ئې د جادو تور دربانديږ لګاوه. په جادویي چارو کې د لاس لرلو سزا مرګ وو. خو له جادوګرانو او کوډګرانو هم خلک ډېر ېېرېدل.

**د دې دورې شتمنو خلکو څه شي خوړل؟**

پیسه دارو خلکو به پسونه کبابول، هیلۍ به ئې پخولې، د غوایي او نورو حیواناتو له غوښو به ئې ډول ډول خواړه پخول. د پخلي له پاره به مسالې د اندونیشیا او نورو آسیایي هیوادونو څخه راتللې.

د فلورنس د ښار خلک د پخلي دومره شوقیان ول چي د آشپزۍ ښوونځي ئې پرانیستي ول. شتمنو خلکو به خپل مېلمانه د ښو خوندورو غذاوو په پخولو نازول او رقم په رقم خواړه به ئې ورته تیارول. ان د طاوس او هوسۍ کباب به ئې پخاوه. آش او مکروني هم د پیسه دارو خلکو خوراک وو. خلکو اوس په پنجه د ډوډۍ خوړل زده کړي ول. که څه هم چي په پنجه د ډوډۍ خوړل ورته ډېر عجبه معلومېدل. دوی زیاتره کاچوغه او چاړه کارول. یو چا چا بیا په لاس هم ډوډۍ خوړه.

**د دې دورې خوارانو څه شي پخول؟**

د دې دورې د خوارو کورنیو خواړه ساده ول. د غوایي ښورا به ئې پخول او سابه ئې ور اچول او بیا به ئې ډوډۍ په پوري کول. په ۱۵مو او ۱۶مو پېړیو کي ګڼ شمېر خلکو د غاښو د تداوۍ پیسې نه درلودې. دا ډېره عامه خبره وه چي د هر چا په خوله کي یو یا دوه غاښونه کم وي. ځکه نو د ښوروا خوړل آسانه ول.

**پیسه دارو خلکو څه شي اغوستل؟**

په دې دوره کي پر فېشن ډېري پیسې خرڅېدلې. یوې پیسه داري ښځي به اوږد کمیس چي له وړی، ورېښمو او بخمل څخه به جوړ سوی وو، اغوستی. ورېښتان به ئې هم ډېر ښایسته ورسره جوړ کړي ول. په سر کي به ئې ګلونه ایښوول. شَپو یا خولۍ ئې پر سرول. د دوی کمیسونه به له څو پرکانو څخه جوړ سوي او یو د بل پر سر به رغ سوي ول. د خامکانو رنګارنګ ګلونه به پر قطار ول. د زر او زیوراتو هیڅ کمبود نه وو. د آرایش ښه قیمتي سامانونه به ئې درلودل چي له لبسرینه نیولې بیا تر سرخۍ او ان د غاښو د سپین واله لپاره هم د آرایش سامان موجود وو.

**خوارانو څه شي اغوستل؟**

خواران هم په تن پټ ول. د فلورنس په ښار کي د ښو ټوکرانو هیڅ کمبود نه وو. د نړۍ د بېلا بېلو هیوادونو ډول ډول ټوکران را واردېدل. د فلورنس ښارخپله د وړیو فابریکه درلوده او رنګارنګ ټوکران او ډیزاینونه ئې جوړول. د دوی ښځو هم اوږده کمیسان اغوستل خو ډېر قیمتي به نه ول.

**د رنسانس په دوره کي د ډوډۍ خوړلو آداب څنګه ول؟**

د رنسانس د دورې خلکو د ډوډۍ خوړلو خاص آداب درلودل. چي یوې میلمستیا ته به ولاړې نو یو دستمال به ئې درکاوه چي خپل

لاسونه او خوله په پاکه کړي. خو په سرمیزي خوله پاکول هم بده خبره نه وه. د دوړي پر وخت په غوړونو لاسونه وهل ډېر بد کار ښکارېدی. کولای دي سوای خپله ډوډۍ له ګاونډي سره شریکه کړي خو د خوړلو مخکي چي له هډوکو به ئې غوښه جلا کړه نو بیرته ئې پر مېز اېښوول بد کار وو. هډوکي به ئې تر مېز لاندي غورځول.

**د دې دورې شتمن خلک په څرنګه ودانیو کي اوسېدل؟**

په دې دوره کي ډول ډول کورونه جوړېدل. ډېر شتمن خلک به په قصرونو کي اوسېدل. تر هغو لږ شتمنو بیا داسي کورونه په کرایه اخیستل چي تر حساب تېري خوني به ئې درلودې. پر دېوالونو به ئې ښکلي رسامۍ سوي وې. د ښار کورونه به له ډېرو جوړېدل او پلستر به ئې ورکاوه. ښیښه یا هینداره هم په ۱۴مه پېړۍ کي د لومړي ځل له پاره جوړه سوه. یوازي شتمنو خلکو به په خپلو ودانیو او کورونو کي کارول. د ډېرینو کورونو د اور د اخیستلو خطر لږ وو. په دې وخت کي ګاز او برېښنا چا نه پېژندل. اوبه به له ځاه څخه په لاس راتلې او د شپې له خوا به ئې کورونه د تېلو په څراغونو روښانه کول. کورونه چي به هر څومره ښه او ښایسته ول خو بیا به هم په ژمي کي ډېر یخ او تاریک ول. د دود او نم بوی به ئې ورکاوه.

**د دې دورې عامو خلکو څنګه کورونه درلودل؟**

عام او غریب خلک د ښار په څنډو او کلیو کي ساده ژوند درلود. دوی د خټو په کوچنیو کورونو کي اوسېدل او ځیني وختونه به ئې یوه کوټه په څو کسانو په کرایه اخیستې وه. ځیني کورونه به له لرګیو جوړ سوي ول. په دې کورونو کي ښیښه یا هینداره نه وه کار سوې، ډېر یخ او تاریک به ول.

**په کورونو کي ئې کوم سامان درلودل؟**

د دې وختونو د کور سامانونه هم ډېر ساده ول. لکه یوه اوږده چوکۍ، یو مېز، د شیانو د خوندي ساتلو له پاره یو صندوق او یو چپرکټ. د کور په سامانونو کي چپرکټ ډېر مهم وو. د یوې کورنۍ ټوله غړو به پر یوه چپرکټ خوب کاوه، ځیني وختونه به ان د کور مزدور هم له نوري کورنۍ سره یو ځای پر چپرکټ بیده وو. په ۱۴۹۰م کال کي بیا داسي یو چپرکټ رواج سو چي شاوخوا به ئې پردې پر را ګرځولي وې چي د خوب ځای ګرم وساتي.

خلکو به خپلي پیسې او توره تر چپرکټ لاندي پټول. نور مهم اسناد به هم دلته خوندي ول. د کور دغه سامان له لرګي څخه جوړ سوی وو. خو د معتبرو خلکو د کور په سامان کي به ښایسته لرګي خورا په نقش او نګار کار سوي ول.

**آیا د رنسانس په دوره کي عصري تشنابونه ول؟**

د رنسانس د دورې خلکو عصري تشنابونه نه درلودل. معتبرو خلکو به یوه چوکۍ درلوده چي منځ به ئې سوری وو، تر کاروني وروسته به د کور مزدور دباندي خالي کول. دا چوکۍ به د خوب په خونه کي پرته وه. د لمبېدو ځای ئې هم نه درلود. ځینو

خلکو داسي تشنابونه درلودل چې د بدرف لار به ئې د کور دباندي وتلې وه.

**د رنسانس په وختونو کي چا ډېر قدرت درلود؟**

د رنسانس تر دورې پوري واک د کليسا په لاس کي وو. د کليسا پېشوا (پاپ) ئې مشري کوله. خو د رنسانس په دوره کي ځينو ليکوالانو، ساينسپوهانو او د نظر خاوندانو د کليسا زده کړې تر پوښتنو لاندي راوستلې.

**آيا دا خطرناکه نه وه چې مذهب تر پوښتنو لاندي راسي؟**

د کليسا خبره نه منل او يا ئې هم زده کړې تر پوښتنو لاندي راوستل ډېره خطرناکه خبره وه او که چيري يو کس دا کار کاوه نو هغه به شکنجه کېدی او سزا به ئې مرګ وو. خو بيا هم ځينو زړه ورو ليکوالانو، ساينسپوهانو او د نظر خاوندانو دغه جرئت کاوه چې له خپل مذهب سره په ټکر کي، خپلې تجربې او لاسته راوړني خلکو ته څرګندي کړي.

**د کليسا وضيعت څنګه وو؟**

د کليسا پيشواوو خپلې دندې په سمه نه تر سره کولې. د کليسا پادري واده نه کوی يا هغه ښځې چې په کليسا کي کار کوي او دوی (نن) ورته وايي هم اجازه نه لري واده وکړي. خو په دغه وخت کي د کليسا پيشواوو له ښځو سره جنسي اړېکي ساتل. د خپل مذهب خلاف کارونه به ئې کول. فساد هم پکښې ډېر سوی وو. د پادريانو دغه وضيعت د خلکو په منځ کي د دوی اعتبار ته سخت تاوان اړولی وو.

**د فلورنس د ښار واک د چا په لاس کي وو؟**

د رنسانس په دوره کي فلورنس نه يوازي يو ښار وو بلکي يو ايالت وو. لکه يو کوچنی هيواد چې له يو ښار څخه جوړ سوی وي او پر شاوخوا ئې نور کوچني کلي را ګرځېدلي وي. د ايټاليا نور ښارونه او د اروپا د نورو ښارونو جوړښت هم ايالاتي وو. مانا دا چې هر يو ښار ځانته يو حکومت وو.

**د دغو کوچنيو حکومتونو يا ايالاتونو مشران څوک ول؟**

د دغو کوچنيو ايالاتونو مشران پاچهان، ملکې او شهزاده ګان ول. دوی ته به قدرت له خپلي کورنۍ څخه په ميراث رسېدی. مانا دا چې تر پلار وروسته به د زوی د پاچهۍ نوبت وو. ځيني وختونه به يو جنګي مشر د جګړې تر ګټلو وروسته خپله پاچهي اعلانوله. بيا به نو د هغه حکم قانون سو.

**آيا د فلورنس په ښار کي ټاکني تر سره کېدلې؟**

د فلورنس ښار يو جمهوريت وو. مشران به د ټاکنو له لاري غوره کېدل. په هرو دو مياشتو کي به ۹ غړي د يوې شورا ټاکل کېدل او د فلورنس ښار به د هغې شورا له خوا اداره کېدی. خو دا ډيموکراسي يا اولسواکي نه وه. ځکه د رايو ورکولو حق هر چا نه درلودی. دغه شورا د سيګنوريا «Signoria» په نامه يادېده.

**په ټاکنو کي د رايو ورکولو حق چا درلودی؟**

يوازي پيسه دارو نارينه وو د رايو حق درلود. ښځو، خوارانو او مزدورانو د رايو ورکولو حق نه درلود.

**که زه وغواړم د فلورنس په ښار کي د واک خاوند سم نو څه بايد وکړم؟**

که دي غوښتل چې يو څه واک او اختيار

لاسته راوړې نو اول خو باید خپله ښې پیسې ولرې.که پیسې نه لرې نو له داسي کس سره باید واده وکړې چې ښه د شتمنې کورنۍ وي.د شورا خلکو ته باید رشوت ورکړې چې ستا خبره ومني. پر خپلو سیالانو به هم ښه نظارت کوې. له مزدورانو به د جاسوسانو کار اخلې چې د سیالانو حالونه درته راوړي. په سیالانو پسې به د درواغو آوازې اچوې. که بیا هم ستا سیالان ستا په لاره کي درېدل نو به ئې په زهرو وژنې. خو بلي خوا ته باید چې ځان پر خلکو هم ډېر گران کړې چې ښه شهرت پیدا کړې او هغه دا چې ښه کانسرټونه به جوړوې. د ښایستو ودانیو د جوړېدو مصارف به پر غاړه اخلې. د هنرمندانو هنر به هم به خپله شتمنې نازوې. نو به د واک خاوند کېږې.

**د رنسانس په دوره کي خلکو جادو ته عقیده درلوده؟**

په دې دوره کي خلکو جادو ته ډېره ټینگه عقیده درلوده. که څه هم چې د دې دورې خلک عیسویان ول خو ډېرې ئې نورې عقیدې هم درلودې. په دې عقیدو کي جادو هم راځي. خلکو به د خپلو ستونزو او کړاوو نو د حل لارې په جادو کي لټولې. د دې وخت جادوگرانو خپله دنده په پټه مخته وړله. که به پر چا د جادو تور ولگېدی نو هغه به په دار کېدی، یا به هم ژوندی سوځل کېدی. کله کله به ئې تورن کس په اوبو کي ډوباوه. څکه جادویي لارې چارې منع وې.

**د جادو تر څنګ، نورې کومې عقیدې موجودې وې؟**

دا وخت له جادو سره سره، استرولوجي، «ستورې پیژندنه» ته هم خلکو عقیده لرله. داسي یوه عقیده چې د ژوندانه اټکل د ستورو په کتلو کي پلټي او خلکو ته د راتلونکې په هکله معلومات ورکوي. لکه یو سړی په سفر ځي او غواړي پوه سي چې دا سفر به د ده په گټه وي او که په تاوان.

**سلطان سلیمان څوک وو؟**

سلطان سلیمان د قسطنطنې (اوسنۍ ترکیې) پاچا وو. د رنسانس په دوره کي د عثماني امپراطورۍ پاچا، سلطان سلیمان زیات پوځي واک درلود او ډېر شتمن وو. له ۱۵۲۲م کال څخه ئې بیا تر ۱۵۶۶م کلونو پورې د شان او شوکت پاچهي کړې ده.

**د رنسانس په وخت کي کوم شیان اختراع سول؟**

د رنسانس په دوره کي دغه شیان اختراع سول چې تر اوسه کار څني اخیستل کیږي:

| | |
|---|---|
| عینکي | (۱۲۸۰) |
| ښیښه یا هینداره | (۱۴۰۰) |
| توفنچه | (۱۴۳۰) |
| د چاپ اختراع | (۱۴۳۰) |
| پنسل | (۱۵۰۰) |
| جیبي ساعت | (۱۵۰۹) |
| د دیوال کاغذ | (۱۵۱۰) |
| ترمامیتر | (۱۵۹۳) |
| عصري تشناب | (۱۵۹۵) |
| ټیلسکوپ | (۱۶۰۸) |
| پراشوټ | (۱۶۱۷) |
| اوبتل | (۱۶۲۰) |

**لیونارد دوینچي څوک وو؟**

لیونارد دونیچي د رنسانس تر ټولو مهم

شخص دئ. هغه نه یوازي چې یو ستر نقاش، مهندس او ژور فکر کوونکی وو، بلکې د سوونو نویو اختراعو تر شا د ده نظریات ول. خو دغه نظریات، ده یوازې رسم کړي ول. په دغو رسامیو کې هلیکوپټر، پراشوټ، ټانک او توپک شامل دي. لیوناړدو د کار او کسب زیاته برخه په فلورنس کې تېره سوې ده. د «مونا لیسا Mona Lisa» په نامه یوه زړه وړونکې تابلو د ده د کمالاتو یوه نمونه ده. د لیوناردو دوینچي دغه خبره ډېر شهرت لري چې وایي: "د پوهې په لاسته راوړنه کې ډېر و لږ مانا نه لري خو هغه پوهه ډېره ژوره ده چې د تجربې پر بنسټ لاسته راغلې وي".

**لومړی ساعت چا جوړ کړ؟**

لومړی ساعت د جرمني «پیټر هنلاین، Peter Henlein» جوړ کړ.

**ټیلیسکوپ د چا اختراع وه؟**

هالنډي مخترع «هانس لیپرشي، Hans Lippershey» په ۱۶۰۸ کال کې لومړی ټیلیسکوپ جوړ کړ.

**د لومړي ځل له پاره پراشوټ چا وازمایه؟**

په ۱۶۱۷ میلادي کال کې د «کروېشیا، Croatia» اوسېدونکي «فوست ورانچیچ، Faust Vrancic» د لیوناردو د وینچي له رسامۍ څخه پراشوټ جوړ کړ. ویل کېږي چې هغه په خپل جوړ سوي پراشوټ کې ځان راواچاوه.

**لومړی اوبتل چا وازمایه؟**

په ۱۶۲۰ کال کې هالنډي نوښتګر «کورنیلس ډربیل، Cornelius Drebbel» لومړی اوبتل جوړ کړ چې سم کار ئې کاوه. د اوبتل په جوړولو کې چرم او لرګي کار سوي ول.

**هنر او معمارۍ چیرې ښه وده وکړه؟**

ډله ډله معمارانو او د هنر خاوندانو د لویو ښارونو لکه فلورنس، لندن او پاریس پر خوا مخه کړه چې د پاچهانو، اشرافو او شتمنو سوداګرو له پاره کار وکړي.

نور بیا ...

لیکوال: م. ن نوري

## تر هر څه قهر سخت دئ

د حضرت عیسی علی نبینا و علیه السلام څخه چا پوښتنه وکړه چې تر ټولو سخت څه شي دئ؟ ده ورته وویل چې د الله تعالی قهر. بیا ئې پوښتنه ځني وکړه چې د الله تعالی له قهره سړی په څه شي خلاصېدلای سي؟ ده ورته وویل چې د خپل قهر په پرېښوو. یعني چې تر خپل غضب او قهر تېر سي.

### مثنوي

کـه دي پرېښـــوولی قـــــهر
ګـــویا ترک دي وهــــل زهر

څو فـایدې وروره پکښې دي
په آخـــر کښې ئې مـــزې دي
لـــــومړی نه ســـوې آزاري
که ته نه ســـوې خـــوشکتې
بلـــه ډېـــره پښـــېماني ده
تر قـــهر وروســـته حیراني ده

بل شیطان دي مغزي مات کی
هم لـذیذ دي خـپل حیات کی

(۱۱)

# د کابل پېغله

(په زړه پوري اسلامي تاريخي ناول)

ليکوال: اسلامي مؤرخ: صادق حسين صديقي
ژباړن: ډاکټر نثار احمد صمد/کاناډا

**د ياغيانو غوښتني**

ارشد پر ټوله لار د هغه زړه وړونکي صحنې په هکله سوچ کاوه چې همدا اوس ئې د شور بازار د حضرت په کور کي وليده. ده په دې باره کي تعجب کاوه چې څنګه هغه زړه ور او غيرتي پښتانه، چې د غازی امان الله خان د راپيل کړو سمونو ئړاغوال دي، خپلو ځوانو لوڼو ته اجازه ورکوي چې د شور بازار د حضرت يا نورو پيرانو او ملايانو کورونو ته ولاړې سي. دی په همدې ګډوډو خيالاتو کي ډوب وو چې خپل کور ته ورسېدی. د ده مور او مزدوراني ورته سترګي پر لاره وې. مور چې ئې دی وليدی نو ورته ويې ويل: زويه، ډېر ناوخته راغلې، تر اوسه چيري وې؟

ارشد د خپلي کمزوره مور سلام او احترام وکړ او د څوکۍ پر يوه خوا کښېناست. وروسته ئې د سترګو ليدلی ټول هغه حال ورته بيان کړ چې د حضرت په کور کي ئې ليدلی وو. کله چې ده هماغه جريان ورته وايه چې د لنډ وخت له پاره ئې يوې خيالي دنيا ته بېولی وو.

نو مور ئې وويل: دا خو ډېره بده خبره ده، هيڅوک هم بايد خپلي لوڼي او مېرمني پيرانو ته و نه لېږي.

ارشد: اصلي خبره دا ده چې په هيواد کي دا عليحضرت حکومت د پيرانو او ملايانو نه دئ. نو د هغوی د کمزوره کولو له پاره اعليحضرت داسي ګامونه اوچت کړي دي چې له مخي ئې د پيرانو او ملايانو قدرت لړ ېږي. همدا علت دئ چې هغوی د اعليحضرت او د هغه د حکومت څخه ناخوښه دي.

عايشه: زه د پيرانو او ملايانو پر دغسي ذهنيت باندي افسوس کوم. ښه، اوس ته ورځه بيده سه چې ډېر ناوخته دئ.

ارشد هم سلام وکړ، ولاړ سو او خپلي بسترې ته ولاړی او پرېووت. څنګه چې شپه ډېره تېره سوې وه نو د پرېوتلو سره سم بيده سو. سهار وختي راويښ سو او لمونځ ئې ادا کړ. ناری ئې وکړ او بيا مخ پر فرقه وخوځېد. ارشد که څه هم د اخبار لوستلو سره مينه نه لرله، خو په بازار کي د يو اخبار پلورونکي هلک په

لیدو سره هغه ته ور روان سو. هلک په لوړ ږغ د ورځپاڼو سرټکي اعلانول. هغه داسي ویل: «د امان افغان تازه ګڼه؛ شینوارو اطاعت قبول نه کړ؛ د علی احمد جان ناکام کوښښ؛ نافذ سوي اصلاحات باید ژر تر ژره لغوه سي؛ د ملکه ثریا سَتر او پرده؛ آیا امان الله خان عیسوئ سوی دئ؟ ناسنجشه افغان....» نور دغسي عنوانونه هم ول. د هلک پر شاوخوا ډېر خلک راټول سوي ول. ځینو اخبارونه رانیول او ځیني نور د رانیوونکو تر څنګ ولاړ ول او خبرونه ئې اورېدل.

ارشد چي څو عنوانونه واورېدل نو مخته ولاړ. کله چي شاهي مسجد ته نږدې سو مسعود په مخه ورغی. د مسعود په لیدو سره دی ډېر حیران سو. ځکه هغه د علی احمد جان سره تللی وو. دا چي هغه ارشد ته بې له خبر ورکولو څخه نابېره راغلی وو نو د ده تعجب ئې نور هم ډېر کړ. دی ورمخته سو او د مسعود هر کلی ئې وکړ. مسعود له هماغه لیري څخه سلامي ورته وکړه.

ارشد د هغه د سلامی تر ځوابولو وروسته ورڅخه وپوښتل:

مسعوده، ته دلته؟

مسعود هم رانږدې سو او د غېږ تر روغبړ وروسته ئې ورته وویل: د یو خورا ضروري کار له پاره راغلم.

ارشد: کوم سیاسی کار دئ؟

مسعود: هو، همداسي ده.

ارشد: آیا شینواري سولې ته نه دي حاضر سوي؟

مسعود: نه خو د سولي هڅي سوي دي او نه هم هغوی سوله کړې ده.

ارشد په حیرانتیا سره وپوښتل: د سولي هڅي نه دي سوي؟ نو دا علي احمد جان ولي هلته تللی دئ؟

مسعود: صرف د خپل قدرت د زیاتوالي له پاره!

ارشد: زه سم پوه نه سوم، لطفاً یو څه وضاحت راکړه.

مسعود: د علی احمد جان په دماغ کي دا ورګرځېدلي دي چي که ښورښ آرام نه سي او امان الله خان له واکه لیري سي نو دی به د تخت حاصلولو کوښښ کوي. ده تر اوسه پوري ټوله هغه پیسې چي د جنګ له پاره ئې راغوښتي وې، د شینوارو او نورو باوري خلکو د خپلولو په غرض هغوی ته ور تقسیم کړي دي. نو ځکه ټول شینواري نن د ده کلمه ګویه دي.

ارشد: دا خو ډېره د افسوس خبره ده. اعلیحضرت یو داسي څېره پېژندونکی شخص دئ چي سړي ته په کتلو سره د هغه نیت او اراده معلوموﻻی سي. دغه علي احمد جان د پخوا راهیسي ورمعلوم وو چي ښایي یوه ورځ د سلطنت د حاصلولو هڅي وکړي. له همدې امله ئې د ځان سره اروپا ته بیولی وو.

مسعود: دا یو ډېر طمع کوونکی، لنډ فکره، د هیواد او خلکو بدخواه او چالاک انسان دئ. ده ما ته یو لیک د شور بازار د حضرت له پاه راکړ.

ارشد په خبرو کي ور ولوېد او ورته وېې ویل: نو تا هغه لیک حضرت ته ورکړ؟

مسعود: یا، خط په پاکټ کي بند وو.

ارشد: نو هغه خو دې خلاصولای سو.

مسعود: څنګه؟

ارشد: د تودو اوبو په بخار او یا هم د یو څه حرارت په واسطه.

مسعود: زما دې شیانو ته هیڅ پام نه وو، لویه غلطي راڅخه سوې ده.

ارشد: اوس چیري تللې؟

مسعود: د اعلیحضرت حضور ته.

ارشد: درځه، زه هم درسره ځم.

مسعود: ښاغلې، د دې ځای حالات راته ووایه دلته څه خبري دي؟

ارشد او مسعود دواړه د شاهي مانۍ خوا ته روان سول. ارشد پر لاري د شوربازار د حضرت د عیاشۍ ټول هغه داستان مفصلاً ورته بیان کړ چي برایي (بیګاه) ئې په سترګو لیدلی وو. دواړه په همدې مجلس کي وروسته شاهي مانۍ ته نږدې سول. دلته دواړه د شاهي محل د پیره دار سره مخامخ سول. دوی ځانونه ورمعرفي کړل او د اعلیحضرت په حضور ئې د مشرف کېدلو ورته وویل. پیره دار هم ولاړی او لږ ګړی وروسته راغی او دواړه ئې یوې مجللي خوني ته بوتلل. دا خونه که څه هم غټه نه وه، خو اعلی درجه کوچونه او څوکۍ پکښي ایښودل سوي ول. په ډېرو قیمتي شیانو سره ښکلې سوې وه. یو ګړی وروسته غازي امیر امان الله خان، چي شنه کرتۍ او پتلون ئې اغوستی او انګرېزي خولۍ ئې پر سر وه، تشریف راووړ. دواړو په ډېر ادب سره سلامي ورته وکړه. هغه د سلامۍ تر ځوابولو وروسته ښه روغبړ ورسره وکړ. بیا پر یوه کوچ باندي کښېناست او دواړو ته ئې پر څوکیو د کښېناستو اشاره وکړه. دوی هم دواړه کښېناستل.

اعلیحضرت له مسعود څخه وپوښتل: ته کله راغلې؟

مسعود: همدا نن راغلم.

امان الله خان: آیا علي احمد جان کوم پیغام رالېږلی دئ؟

مسعود: هغه د شوربازار د حضرت له پاره یو خط راکړی وو.

امان الله خان په حیرانتیا سره مسعود ته وکتل او بیا ئې ترې وپوښتل: د شوربازار د حضرت له پاره خط؟

مسعود: بلې هو.

امان الله خان: نو تا هغه لیک ورکړ؟

په دې خبره سره امان الله خان مسعود ته وکتل او مسعود ورته وویل چي هوکې، دا غلطي راڅخه وسوه.

امان الله خان: هو، تا سخته اشتباه کړې ده او اول دې باید هغه ما ته راښکاره کړی وای. خیر، دا راته ووایه چي علي احمد جان هلته څه کوي؟

مسعود: اعلیحضرته! هغه د افغان تاج سره د خیانت په فکر کي دئ.

امان الله خان: زما هم همدا خیال وو چي هغه هلته د شینوارو په منځ کي د خپل قدرت د زیاتوالي کوښښ کوي.

مسعود: هغه شپه او ورځ په همدې تلاښ کي دئ. څومره پیسې چي هغه د جنګ له پاره غوښتي وې، ټولي ئې د پیاوړو شینوارو په منځ کي د خپل ځواک د زیاتوالي له پاره تقسیم کړي دي.

امان الله خان یو څه وخبښمېد او څېره ئې له دردہ سره سوه، له سترګو ئې سرې انګارې راپورته سوې او بیا ئې په قهر سره وویل: سرکښ، خاین!

امان الله خان غوښتل چې نور څه هم ووایي چې نابېره یو نفرخدمت عسکر حاضر سو. د هغه په راتګ سره امان الله خان چپ سو او هغه ته ئې کتل چې څه وایي. هغه وویل: اعلیحضرته! د شوربازار حضرت غواړي چې ستاسي په حضور مشرف سي.

امان الله خان: هغه په مخامخ خونه کي کښېنوه او د ارشد او مسعود د شتون په باره کي مه ورته وایه.

نفرخدمت: ډېر ښه، عالي جناب!

عسکر بیرته ووت او امان الله خان داسي وویل: اوس به د علي احمد جان د خط حقیقت معلوم سي، د شوربازار حضرت ضرور د هغه په ارتباط د څه ویلو له پاره راغلی دئ.

مسعود: هو، حتماً.

امان الله خان: تاسي دواړه همدلته کښېنئ او زه به وګورم چي هغه څه وایي.

مسعود: بالکل سمه ده.

امان الله خان هم ولاړ سو او ولاړی. ارشد مسعود ته داسي وویل: مسعوده! آیا موږ نه سو کولای چي د شوربازار د حضرت خبري واورو؟

مسعود: دا کار ډېر خطرناک دئ.

ارشد د خوني چت ته وکتل او بیا ئې وویل: که هر څه کېږي زه حتماً دا کار کوم.

مسعود: ته څنګه دا کار کولای سې؟

ارشد: ګوره، په چت کي هغه کولک (روښاندان) دئ او غواړم هغه ته ځان ورنږدې کړم.

مسعود: چي داسي ده، نو صبر وکړه چي زه پر میز باندي هغه څوکۍ کښېږدم.

ارشد: دغه غټ مېز دیوال ته نږدې کړه او بیا هغه دوې څوکۍ پر کښېږده.

مسعود: سمه ده.

دوی دواړو په چټکۍ سره مېز راپورته کړ او دېوال ته ئې نږدې کښېښود او له پاسه ئې دوې څوکۍ کښېښوولې او دواړه پر دغو څوکیو ودرېدل. په دې ډول د دواړو سرونه چت ته ورسېدل. روښاندان چت ته نږدې وو. دوی د روښاندان څخه پټ پټ وکتل. د شوربازار حضرت ئې امان الله خان ته مخامخ ولیدی. د دواړو په منځ کي یو مېز پروت وو. حضرت داسي ورته ویل: هوکې، علي احمد جان د شینوارو د پوهولو له پاره ډېر کوښښ کوي خو هغوی ئې نه مني.

امان الله خان: نو هغوی څه غواړي؟

د شوربازار حضرت: زه نه سم درته ویلای.

امان الله خان: ته خو د هیواد او ملت خیر غوښتونکی یې. نو که تا ته معلومه وي چي هغوی څه غواړي، حتماً ئې باید ووایې.

د شوربازار حضرت: د افسوس خبره ده چي د یاغیانو پیغام زما په غاړه کي را اچول کېږي.

امان الله خان: دا خو هیڅ کومه خبره نه ده.

د شوربازار حضرت: هغوی بدبختان غواړي چې اول تاسي له تخته بې واکه سي. که دا نه کېږي نو ځومره قوانین چې ستاسي حکومت نافذ کړي دي، باید فسخ سي او اصلاحات هم باید لغوه سي.

امان الله خان ته هم درد ورغی او مخ ئې سور او سترګې ئې تکې سرې سوې. دا امکان هم وو چې هغه د خښم او قهر په څپو کې لاهو سوی وای او داسي امر ئې کړی وای چې له امله ئې په هیواد کې د وینو ویالې بهېدلې وای. خو هغه ځان ټینګ کړ او خپل غصه ناک حالت ئې کنټرول کړ او ویې ویل: که همداسي وي نو دواړه کارونه ممکن دي. زه به ټول هغه قوانین بیرته فسخ کړم چې نافذ سوي دي او اصلاحات به هم بیرته واخلم. او که زما اولس په دې هم راضي نه سي او بیا هم پر تخت باندي ما نه غواړي نو زه به د خپل ملت د خیر او ښېګڼي په خاطر له تخت او تاجه هم تېر سم.

د شوربازار حضرت فکر کاوه چې امان الله خان به نه خو پلي کړي قوانین منسوخ کړي او نه به هم سمونونه بیرته واخلي او پاچهي خو هیڅ نه پرېږدي. مګر کله چې ئې د غازي امان الله خان همدا دریځ درک کړ نو سخت حیران سو.

اصلي خبره دا وه چې د شوربازار حضرت داړدوړ او ښوربښ ایجادولو په فکر کې وو، یعني له تشدده ډک انقلاب. ده خپل ځواک په دې کې لیدی چې په هیواد کې بلوا جوړه سي، ناآرامي، فتنې او بې ثباتي پیل سي او د وینو ویالې وبهېږي. افغانان په خپلو کې وجنګېږي او تباه سي او هیواد هم وران سي. ده ولي دغسي غوښته؟ ځواب ئې په دې کي نغښتی دئ چې د ده فطرت او ذهنیت همداسي وو.

هو، هغه سخت متعجب سو او کله چې ئې د ځوان طبیعته معظم همایوني اعلیحضرت نظر واورېدی نو خپلو اهدافو ته بیا هم نه رسېدی. نو هغه وو چې داسي ئې وویل: «شینوارو تر بشپړ غور وروسته اتلس غوښتني رالېږلي دي. هغوی غواړي چې ستاسي حکومت دغه غوښتني منظور کړي.

د شوربازار حضرت له خپل جیب څخه یو پاکټ را وایستی او خلاص ئې کړ. له هغه ئې یو اوږد او غټ کاغذ راوکیښ، په لاس کې ئې نیولی وو او ودرېدی. امان الله خان ورته وویل چې ویې لوله.

د شوربازار حضرت هم د هغه په لوستلو پیل وکړ چې داسي پکښي لیکلي ول:

موږ د شینوارو د قوم باصلاحیته کسان د غازی امیر امان الله خان څخه په ډېر ادب سره غواړو چې د دوی حکومت چې تر ننه ځومره قوانین طرح او نافذ کړي دي او کوم اصلاحات چې ئې پلي کړي دي د هغو له جملې څخه ډېر ئې په دین کې مداخله ده. موږ غیرتمن افغانان چې پر دین باندي د سر قربانولو پتنګان یو په هیڅ توګه دا شیان نه سو منلای. نو زموږ نظر دا دئ چې دا ټول قوانین دي فسخ سي او ګرده اصلاحات دي بیرته واخیستل سي. زموږ جرګې تر ډېر غور او فکر وروسته دا لاندي اتلس غوښتني چمتو کړي دي چې د منظورۍ او نفاذ وړ دي. نو موږ هیله من یو چې د هیواد د کورنیو ښېګڼو او سمون له پاره دا غوښتني قبولي او منظور سي چې په لاندي ډول دي:

لومړۍ ماده ـ یوه پنځلس کسیزه اجرائیه شورا دي جوړه سي چي ډېری به ئې پیران او ملایان وی. پاته غړي به ئې مشهور او مقتدر اشخاص وي. دغه شورا به د ټولو ملکي، نظامي او مذهبي چارو په اجراء کي لوړ اختیارات او صلاحیتونه لري.

دوهمه ماده ـ اعلیحضرت دي شرعي قوانین نافذ کړي.

دریمه ماده ـ په ټولو ملکي او پوځي چارو کي دي د مدعي او مدعي علیه له طرفه وکیلان راوړاندي سي.

څلورمه ماده ـ کومي نجوني چي د طبي علومو د زده کړي له پاره ترکیې ته لېږل سوي دي، هغوی باید فوراً بیرته راوغوښتل سي. د نجونو له پاره دي تعلیم ضروري نه ګڼل کېږي.

پنځمه ماده ـ د هندوستان د دیوبند د دارلعلوم علماوو ته دي افغانستان ته د راتګ اجازه ورکړه سي.

شپږمه ماده ـ رشوت خوړل دي بند کړل سي.

اوومه ماده ـ هیڅ کومه ښځه دي په عام محضر کي بې له نقابه نه ګرځي. د سَتر او پردې د احکامو پابندي دي د شریعت سره سم جداً تعمیل سي.

اتمه ماده ـ د مذهبي روحانیونو او ملایانو له پاره دي د منظور سوي ښوونځي (یا مدرسې) د سند اخیستلو قانون فسخ سي.

نهمه ماده ـ عسکري خدمت دي نه جبري کېږي.

لسمه ماده ـ علماوو ته دي اجازه ورکړه سي چي که څوک د شرعیت پر خلاف عمل باندي ووینې نو سزا دي ورکړي.

یوولسمه ماده ـ د پنجشنبې پر ځای دي بیرته د پخوا په شان جمعه رخصتي کړای سي.

دوولسمه ماده ـ ټولي ښځي، په شمول د ملکه ثریا دي د لوېدیځ لباس اغوستلو څخه منع کړای سي.

دیارلسمه ماده ـ د مذهبي روحانیونو او ملایانو په ښېو کي دي د لوېدلو او مچولو ته اجازه ورکړه سي. عوامو ته دي امر وسي چي هغوی د پیرانو، ملایانو او مذهبي روحانیونو هر حکم د قانون غوندي لازمي وګڼي.

څوارلسمه ماده ـ طالب العلمانو ته دي اجازه ورکړه سي چي هغوی د خپلې شاګردۍ پر مهال واده وکړای سي.

پنځلسمه ماده ـ د پور شفاهي وعدې دي د پخوا غوندي اجازه ولري او د کوم سند شتون دي حتمي نه بلل کېږي.

شپاړسمه ماده ـ د نجونو مکتبونه دي فوراً بند کړل سي.

اووه لسمه ماده ـ ټولو خلکو ته دي د شرعي لباس اغوستلو اجازه وي.

اتلسمه ماده ـ هر شراب څښونکي افغان ته دي سزا ورکړه سي.

موږ دا غوښتني وړاندي کوو او هیله من یو چي بې له تعدیل او تنسیخ څخه نافذ کړل سي.

موږ د افغاني تاج او تخت د مقتدر شینواري قوم خلک یو.

اعلیحضرت امیر امان الله خان دا غوښتني په ډېر دقت او پاملرنه سره اوربدلې. کله چي د شور بازار حضرت خاموش سو نو امان الله خان وویل:

«دا داسي غوښتني نه دي چي باید رد سي. زما ګرانو اتباعو ته ووایه چي سر له ننه زه خپل ټول هغه قوانین فسخ اعلانوم چي د ۱۹۱۹ راهیسي نافذ او اجرا سوي دي. اصلاحات بیرته لغوه کړئ او د هغوی اتلس غوښتني له یو مخې ومنئ. د ښورښ فتنه له هیواده رفع او دفع کړئ او زما سره عملاً د اقتصادي او اجتماعي پرمختګ له پاره ملګري سئ. زما دغه فرمان د هیواد فرد فرد ته ورسوئ».

د شوربازار حضرت په خورا تعجب سره امان الله خان ته کتل. هغه ښه پوهېدی چي په دنیا کي به د ده غوندي خورا لږ پاچهان وي چي خپل نافذ کړي قوانین او اصلاحات د خپلو هیوادوالو د ویني تويېدو څخه پرته بیرته فسخ کړي. دا لا څه، اعلیحضرت نه یوازي دا چي د خپلو اړونده قوانینو او سمونونو د لغوه کېدو اعلان وکړ بلکي د خپل اولس هغه اتلس غوښتني ئي هم ومنلې چي یاغي کسانو وړاندي کړي وې. نو ځکه هغه د خوښۍ پر ځای غمجن سو او د خپګان دا نخښي ئي له ورایه پر څېره راښکاره سوې. امان الله خان ورڅخه وپوښتل چي آیا بله کومه خبره کول هم غواړې؟

د شوربازار حضرت پوه سو چي اعلیحضرت غواړي چي روان سم. نو ولاړ سو او ویې ویل: بس نور ویل نه لرم او د رخصتېدو اجازه غواړم.

امان الله خان: ته د رعیت او واکمن تر منځ د یو درېیم ګړي په حیث راغلی وې. څومره چي دي د رعیت د احساساتو او خیالاتو ویندویې وکړه نو همداسي زما د خیالاتو ویندويي هم وکړه.

د شوربازار حضرت: همداسي به وکړم.

د شوربازار حضرت سلام وکړ او رخصت سو. امان الله خان هم ولاړ سو. هلته ارشد او مسعود ژر د څوکیو څخه راکښته سول. هغوی میز او څوکۍ واخیستل او بیرته ئې پر خپلو اصلی ځایو باندي کښېښوول او د مخکي غوندي عادي پر څوکیو کښېناستل. لږ ګړی وروسته امان الله خان بیرته همدې خوني ته راغی. د هغه په څېره کي د تشویش او اندېښني هیڅ کومه نخښه نه معلومېده. هغه راغی او په ډاډه زړه بیرته پر خپله څوکۍ باندي کښېناست. د هغه د کښېناستلو سره سم ارشد ترې وپوښتل: لکه چي د شوربازار حضرت تشریف یووړ؟

امان الله خان: هو، ولاړی. هغه د یاغي شینوارو غوښتني راوړي وې. وروسته ئې هغه ټول جریان ورته ووایه چي مخکی ذکر سو.

ارشد وویل: د اعلیحضرت په شان به بل داسي اولس پال او مهربان پاچا و نه لیدل سي. یقیني خبره ده چي اوس به نو ښورښ غلی سي.

امان الله خان: دا کار تر څو چي په هیواد کي د جاهلو ملایانو او مرتجعو پیرانو اقتدار خپور وي، امکان نه لري او زما په خیال اوس به دا ښورښ نوي عیبونه او خرابۍ هم ومومي.

ارشد: که همداسي وي، نو د شینوارو غوښتني ولي ومنل سوې؟

امان الله خان سوړ اسویلی وکیښ او ویې ویل: زه د هیواد او ملت خیر غوښتونکی یم. په دې اعتراف کوم چي د خپلو اصلاحاتو په پلي کولو کي مي له تلواره کار اخیستی دئ، نو ځکه مي بیرته فسخ اعلان کړل. زه له دې بېرېږم چي مبادا بغاوت د وینو بهېدو باعث نه سي. نو ځکه مي د شینوارو غوښتني ومنلې. زه تر ټولو د همدې شوربازار د حضرت له خوا اندېښمن یم. د ده په نسخه کي سَمي او زهري دوا رامعلومېږي. زه داسي انګېرم چي دی به اوس په کومه بله طریقه سره اولس راوپاروي. ارشده! هغه خو پر تا اعتماد لري او ډېر پر ګران یې، نو د هغه کور ته ورسه او معلومه کړه چي دی نور څه پلان او اراده لري.

ارشد: زه د اعلیحضرت د امر تابع یم. دا مهال نو امان الله خان یو څه مشوش او خپه غوندي سو. ارشد او مسعود هم خپله ناسته نوره لازمه نه بلل. د تللو اجازه ئې وغوښته، راولاړ سول او راووتل او د بازار پر خوا روان سول.

هارون خپل شعشعي/ لندن

# وختونه او یادؤنه

## پالبيني او روحانيت

په يوه خاطره کښې مي د پالبينۍ د حقيقت او افسانې په اړه د ستر گوٌ ليدلئ حال و وايه. د کراچي د هغه پالبين کيسه مي بيان کړه، چي زما او درو همکارانوٌ پالوٌنه يې و کتل؛ او ټول يې په خپله پوهه او مهارت هک پک کړوٌ. په ټولو خبروٌ او اټکلو کښې بس يوازي دا پېشگويي زما و مات او شکاک زړه ته نه لوېدله، چي گوٌندي په راتلوٌنکوٌ څو مياشتوٌ کښې به د اوٌروٌپا په اوٌږده سفر وزم. همکارانوٌ مي د پالبين اکا د دې ظاهراً ښادمن او اوٌميدبخښوٌنکي اټکل په آروېدوٌ سره سمدلاسه د خوشالۍ او مبارکۍ نارې کړې. کله چي مي د کورنۍ و غړوٌ ته هم د اوٌروٌپا د سفر دا زېرى و وايه، هر يوه په ټوکوٌ او مسخرو د پالبين اکا د پالبينۍ په اړه شک او ترديد و ښيه. دا پلا د يو بل ډَول پالبينۍ د رمز و راز په باره کښې څو يادوٌنه درسره شريکوَم.

په کراچي کښې موٌ د څو کلني پردېسۍ په ټوله موٌده کښې له يکي يوې پاکستانۍ کورنۍ سره راشه درشه لرله. دا مهربانه، مهذبه او روښانه پاکستانۍ کورنۍ زموٌږ د کور د خاوند، اينجنير عبدالرشيد او ډاکټر رييس فاطمې کورنۍ وه.

اينجنير عبدالرشيد، چي د پاکستاني دود او دستور له مخي به ټولوٌ «رشيد صاب» باله، په امريکا کښې د اينجينرۍ ډاکټري اخيستې وه؛ او دا مهال د کراچي د ښاري پراختيا په يوه لو او معتبره اداره کښې په کار بوٌخت ؤ. مېرمن يې ډاکټر رييس فاطمه په امريکا کښې تر زده کړوٌ؛ او په عربستان او ايران کښې تر څو کاله کار او خدمت وروسته دمگړۍ په يوه دولتي فابريکه کښې د مامورينوٌ او کارگرانوٌ د طبي کلينک مشره وه.

تر دوه - درې واره راتگ وروسته يې و موٌږ ته هم په ټينگه بلنه را کړه، چي په خپل فارغ وخت کښې اروٌمروٌ د دۍ (دوی) وخوا ته هم چکر ور و هوٌ. موٌږ هم د منني او کورداني په ويلوٌ سره د ور تگ وعده ور وکړه؛ خوٌ په زړو کښې موٌ له يوې خوا دا بېره وه، چي د دې معتبروٌ پاکستانيانوٌ به کله زموٌږ بېوزلوٌ افغانانوٌ سره ور و وزي. له بلې خوا موٌ دا اندېښنه هم لرله، چي خدای مه کړه کوٌچنيان موٌ د انډوخر په جوړولو سره پزي را پرې کي؛ خوٌ په واقعيت کښې هر څه زموٌږ د تصوّر پر خلاف وٌوٌ؛ څکه اينجنير رشيد او ډاکټر رييس دواړه ډېر مينه ناک او همطبع خلگ وٌوٌ. د عمر، پوهې او تجربې پر زياتوالي سربېره يې همېشه د همزولوٌ او دوستانوٌ چم کاوه. که څه هم زموٌږ او

دې، د کوڅنيانو له يو ځايوالي څخه به د کور په دننه يا انګړ کښې لوی اندوخر جوړېدئ، خو هغې (هغوی) به هيڅکله سر نه خلاصاوه. رشيد صاب به ويل، پرېږدئ چي کوڅنيان ځانونه ښه ستړي کي؛ بېچاره ګان په اپارتمان کښې کله دا ځغاستي پاستي کولای سي.

څه سر به مؤ ګرزوم، کله چې تر څه مؤدې زمؤږ د ور تګ هيڅ ځرک ونه ليد، يوه جمعه مېږه او مېرمن دواړه په خپل موټر کښې وکور ته راغلل؛ او مؤږ يې هم بې څه ويلؤ له ځانه سره بوتلؤ. تر ډوډی خوړلؤ او ازادؤ سياسي بحثو وروسته يې بيرته په خپل موټر کښې تر کوره را و رسولؤ. د رخصتولؤ پر مهال يې بيا هم په ټينګار سره و ويل، چي کله نا کله به ارؤمرؤ و ليدو کتو ته ورځؤ.

رشيد صاب او رييس فاطمه که څه هم مذهبي خلګ نه ؤؤ، خؤ د قرآن مجيد د ختم او نذر کولؤ پر دود او دستور خورا ټينګ ؤؤ. و دغسي مراسمؤ ته بې نه يوازي په خپل کور، بلکي د ځينؤ نيژدې خپلوانؤ په کورو کښې هم زمؤږ بلنه نه هېروَل.

د رسمي مراسمؤ په پای کښې به له معمؤل سره سم د پاکستان، افغانستان او کراچي د سياسي – امنيتي حالاتو په اړه خبري او تبصرې کېدلې. ډاکټر رييس له خپل ډاکټر ورور سره په ايران کښې د څو کلن طبابت له برکته په روانه پاړسی خبري کولې. زمؤږ له کورنی، په تېره بيا زما له مېرمني سره يې همېشه د انګرېزي يا اؤردؤ پر ځای و پاړسي خبرؤاترؤ ته ترجيح ور کوَله. مؤږ ته د دې ايراني، خؤ دې ته زمؤږ دري لهجه په زړه

پوري ايسېدله. کله چي به مېرمني په پاړسي ږغېدلې، رشيد صاب به د حسرت او غبطې په دود سر و ښوراوه؛ او په انګرېزي ژبه بې و ويل:

– کشکې زه هم په پاړسي پوهېدلای، چي بې ترجمې مي ستاسي ټولؤ په خبرؤ او تبصرو سر خلاصېدلای. مانديني بې په خندنی، خؤ وياړمنه لهجه ور غبر ګه کړه:

– پاړسي زده کول او ويل څه ټؤکي او مسخرې نه دي. بايد څو کاله شاګردي وکې، چي ايله بېله خپل نؤم او اته پته و ويلای سې.

د اينجنير رشيد پلرنی، کورنی د هند او پاکستان د تجزيې پر مهال د هند د اؤتر پردېش ايالت له مرکز او لوی ښار، لکهنَؤ، څخه و پاکستان ته تللي وه، چي پر اسلامي ثقافت سربېره، د اؤردؤ او پاړسي ادب له مشهؤرؤ او مهمؤ مرکزو څخه ګڼل کېدئ. په دې خاطر يې نو د پاړسي ژبي او ادب په ارزښت ښه سر خلاص ؤ. برعکس د ډاکټر رييس پلرنی، کورنی د هند له جنؤبي ايالتو څخه و پاکستان ته کوچېدلې وه. البته، په پاړسي ادب کښې لاس لرل، اوس هم د ټولؤ پوهؤ او لوستؤ پاکستانيانؤ په نېز (نزد) د پوهي او تهذيب نخښې ګڼل کېدې. اوسنيؤ پاکستاني شاعرانؤ، ليکوالؤ او پوهانؤ به د خپلي دانشوَری او استادی د زباتولؤ دپاره په لوی لاس کوښښ کاوه، چي په روځنيؤ محاوَرو، رسمي ويناؤؤ او ادبي ليکنؤ کښې يو نيم پاړسي ټکي او عبارتؤنه کار کي.

رشيد صاب به همېشه د خواخوږی پر چم ويل:

– هارؤن صاب! عجبه ده زرؤنه، بلکي

لکۀ نه بېسواده افغانان په امریکا، کاناډا، اوږوپا او استرالیا کښې د مهاجرۀ په توګه قبول سوي دي. تاسي څنګه په دې بدمرغه او ناکراره پاکستان کښې ناست یاست؟ وروسته بې د کراچي و بدامنییۀ ته په اشارې سره وویل:

مۀږ په خپله هم د وتلۀ په فکر کښې یۀ. امریکا او انګلستان مۀ لیدلي دي؛ یو هم د ګۀزارې مَلک نه دئ. زړه مۀ دئ دا پلا و نیوزیلنډ ته ولاړ سۀ، چي هم د کۀچنیانۀ د تعلیم و تحصیل ښه امکانات لري؛ او هم د ښه کاروبار او سوله ییز ژوندانه.

څه اوږدې او لنډي به در ته ګوَم، تر ښه ډېرۀ کلو وروسته یې په کور کښې نوی کۀچنی زوکړئ ۀ. مۀږ یې هم د نۀم ایښوولۀ په مراسمۀ کښې و برخي اخیستني ته خبر کړي ۀۀ. رشید صاب دا وار په ډېر ټینګار سره سپارښتنه کړې وه، چي مۀږ او زمۀږ نیژدې خپلوان هم باید په دې مراسمۀ کښې خامخا برخه واخلي. مۀږ هم د دی په ټینګار په وجه، له څه ناڅیز سۀغات سره پر ټاکلي وخت ځانۀنه ور ورسول.

اینجنیر رشید او ډاکټر رییس تېرۀ نذرو او ختمو غۀندي دا پلا هم له بازار څخه تیاره ډوډی را غوښتې وه؛ څکه د دی په نظر په کور کښې د خوړو پخول، د ټول کور فضا د مسالو او داروګانۀ له بویو څخه ډکیي، چي تر څو روځۀ پوري یې اثر نه ځي. په دې خاطر نو بهتره ده، اشپز هر څه په خپل دۀکان کښې تیار کي؛ او دلته یې یوازي د خوَړلۀ دپاره راوړي.

د ترخو اۀریجو/ وریجو (چي دی یې بیریاني بولي)، ترخو غورمو، ترخو سبو او ترخو اچارۀ بازار خورا ګرم ۀ. هر چا خورا په خوَند خوړل؛ خۀ مۀږ د پخوا په شان د ډېر تریخوالي له سَوَبه چندان خوَند پر اخیست.

تر ډوډی خوړلۀ وروسته مېلمانه پر خپلۀ لار ولاړل. یوازي مۀږ افغانان او یکي یو پاکستانی د کور په غټ سالۀن کښې پاته سۀۀ. دغه درۀند او باوقاره پینځه شپېته - اۀیا کلن پاکستانی، چي غنم رنګه پوست، ګردی شناوی ږیره او شا ته ږمنځ کړي سپین وېښتان، منځنی ونه او پیاوړی اندام یې هیڅکله زما د زړه له آرشیف څخه نه وزي، د رشید صاب خاص مېلمه ۀ. رشید صاب د نورو مېلمنو تر رخصتولۀ وروسته په چټکی بیرته مجلس ته راغئ. په څو شېبو کښې د ښایسته چایۀ او وچۀ مېو تر څنګ خوندور پاکستاني کهیّر (زمۀږ پیر نییۀ غۀندي خواږه او خوندور خواږه) و مېز ته راغلل.

- اجازه را کئ. تر هر څه دمخه تاسي یو و بل ته ور و پېژنم. رشید صاب مۀږ ټولۀ ته په خطاب کښې و ویل.

- هارۀن صاب! دا زمۀږ د کورنی ډېر محترم او قدرمن دوست، جناب عنایت صاب دئ، چي پخوا یې په ایریګېشن ډیپارټمینټ (اۀبو لګوَلۀ وزارت) کښې د ډایریکټر په توګه کار کاوه. ښایسته ډېر کلۀنه کیږي، چي د حکومت له نوکری څخه یې لاس اخیستئ؛ او له هغه مهاله تر اوسه په خپل شخصي کاروبار بۀخت دئ. د علم، تقوا او روحانیت خزانه ده.

وروسته یې زمۀږ و خوا ته په لاس نیولۀ سره و ویل:

- هارۀن صاب او کورنی یې زمۀږ افغان دوستان دي، چي په معمار کمپلیکس کښې

زمونږ په اپارتمان کښې اوسي. ډېر شریف او نجیب خلګ دي.

– بالکل سهي وایاست. عنایت صاب په کرار او متین ږغ ور غبرګه کړه.

– هارون صاب! ما ناحقه ټینګار نه ؤ کړئ، چې ننني محفل ته به ارومرو راځئ. مخسد مي دا ؤ، چې له عنایت صاب سره د نیژدې وګورئ؛ او په دې وسیله د خپل ورک ورور د ښه و بد په اړه پوښتنه ځني وکئ. مونږ خو د عنایت صاب پر بزرګۍ او روحانیت هیڅ شک نه لرو. د ژوندانه په ټولو مهمو مسألو کښې همېشه د دی په سلا او مشوره عمل کوو.

– کور مو ودان. له داسي بزرګوار شخصیت سره پېژندګلوي او کتنه لوی ویاړ ګڼو.

– د هارون صاب یو ورور د کابل د روانو تنظیمي جنګو په ترڅ کښې د کور له مخ ځخه برمته سوئ دئ. تر اوسه پوري یې د ژوند یا مرګ هیڅ درک نسته. تاسي یې د ژوند په اړه څه فکر کوئ؟!

اینجنیر رشید په اوردو ژبه له عنایت صاب ځخه پوښتنه وکړه.

– نوم یې څه ؤ؟ عنایت صاب تر څو شېبو ځنډ وروسته په انګرېزي ژبه پوښتنه وکړه.

– ما یې سمدلاسه نوم ورته ووایه.

– د زېږېدو تاریخ یې در په یاد دئ؟

– یا.

عنایت صاب تر لږ ځنډ وروسته د منجمانو په تخصصي لهجه داسي و ویل:

– په ډېر افسوس سره باید و وایم، چې د هغه ستوری لوېدلئ دئ.

تر څو شېبو چپتیا وروسته، رشید صاب ورته و ویل:

– د هارون صاب د ژوند او پردېسۍ په باره کښې څه وایاست؟

– هارون صاب! د زېږېدو نېټه مو را ته و وایاست.

عنایت صاب په خپل متین او پاسته ږغ و ویل.

– د زېږېدو کال را مالوم دئ، خو میاشت او روځ مي دقیقه نه ده په یاد.

– پروا نه لري. د والدې نوم مو را ته ووایاست.

د مور نوم مي ورته و وایه.

عنایت صاب زما و مخ ته تر یوې دقیقي او عمیقي کتني او څو شېبو ژور سوچ (ښایي نجومي محاسبې) وروسته په خبرو شرو وکړه. په پیل کښې د خوی او خصلت، تعلیم او تحصیل، ناخوالو او سرګردانییو په باره کښې خبري وکړې. ورپسې یې په اریانونکو ټکو داسي و ویل:

هارون صاب په راتلونکو څو میاشتو کښې په خیر لندن ته ځې.

د لندن د سفر په آرو ېدو سره ما، مېرمني او اولادو په ډېر تعجب یو و بل ته وکتل؛ ځکه د مخکني پالبین په اټکلو کښې مو د اوروپا د سفر خبره تر غورو تېره سوې وه، خو د مجلس نورو حاضرینو، خاصتاً رشید صاب، ډاکتر رییس دونه جدي و نه ګڼله. څه ګړی وروسته هر څوک پر خپله لار ولاړ.

په داسي حال کښې چې د هیڅا زړه ته نه لوېدله، زه د عنایت صاب له پېشګویي او اټکل سره سم نه جرمني، نه فرانسې او نه کم بل ځای، بلکي دقیقاً و هغه ښار ته په اوږده سفر رهي سوَم، چې ده یې په روښانو ټکو یادوَنه کړې وه. له آ بل پالبین سره یې توپیر بس دا ؤ، چې د هغه په عام ډوَل د اوروپا د سفر خبره کړې وه؛ او دا راز یې د کاغذ پر مخ د داني د ګېلولو له مخي و وایه؛ حال دا چي عنایت صاب په مشخص او معین ډوَل د لندن د سفر خبره وکړه؛ او دا رمز یې زما د مور له نامه او زما ځېږې ته د کتني له لاري ومونده.

# د عبدالرحیم هاتف لیکونه

## (د حاجي عبدالظاهر څرک په نوم)

**شپاړسم لیک**

۲۰۰۴/۶/۲۱م

ګران حاج عبدالظاهر جانه!

السلام علیکم!

خدای تعالی دي په خپله ساتنه ساتلی لره، د آل اولاد، کورنۍ، ورونړو او دوستانو سره.

وایي د هري ورځي له تېرېدو سره د مځکي مزي لنډېږي او تناوونه ئې کشېږي. پخوا به لا خلګو د مواصلاتو لاري سړکان، د ریل خطونه، په دریابونو کي کښتۍ او په وروسته وروسته کي د الوتکو الوتني او میدانونه د دې خبري نخښې ګڼلې (تلیفون پر زیات سو)، اوس خو نو برېښنالیکونه، فاکسونه، د تصویر درلودونکي انټرنیټي مفاهمې او موبایلونه، راډیویي مخابرې لا هم پر زیاتي سوي دي.

خو په دودیزو تماسونو کي د مراسلاتو او پوستو کار که څه هم تر پیاده لیک رسوونکو کار ډېر چټک سوی دئ، بیا هم کله د پخوانیو طریقو څخه په ګټه اخیستلو د لاس په لاس سپارلو په توګه ځیني رجستر لیکونه یا محرم اسناد چي چټک رسول ئې مطلوب وي تر سره کېږي. د مځکي د کوچنیوالي له پاره دغه دلیل بس دئ چي په دایه چوپان کي لا ټک نه وي سوی چي بیا ئې خبر تر چورې پوري رسېدلی وي.

د دنیا له دغو حالاتو څخه زموږ هیواد داسي بېګانه دئ چي ته به وایې چي دا هیواد له سره د موجودي شمسي منظومې په دغه سیاره پوري هیڅ نه وي تړل سوی، او یا د هغې جزء نه ي. یو وار خط ورک بیا ورک، دا دورک کېدلو تکرار سړي ته هم سودا وراچوي هم ناامیدي.

د محمدظاهرشاه د پاچهۍ په دوران کي به ما کله کله پر دغه خبره تعجب کاوه چي زموږ خو هیڅ چاره له نوري نړۍ سره سمه نه ده، اما پوسته به پر وخت رسېدل او رارسېدل. د خطونو تله او راتله منظم وه، حتی پوستي پارسلونه به کله ناکله چا ته سلامت رسېدل اوس لکه چي تر هغه وخت لا هم شا ته پاته یو.

پوسته له پخوا څخه هم خلګو پېژندل، چاپار ئې بلل، خو د امیر حبیب الله خان په وخت کي ئې څه منظمه بنه واخیسته، په کندهار کي ډاګخانه پیدا سوه، امان الله خان چي د هر څه له پاره نظامنامې جوړولې پوسته ئې هم تر یوې دغه ډول نظامنامې لاندي کړه.

یو وخت د پخواني ګنج او شېرعلي خان د دهنې تر منځ د هرات بازار په سهیلي راسته کي پوسته خانه وه چي د مرحوم شمس الدین خان ډاګي کورنۍ اوس هم هورې مېشته دي یا مېشته وه. شمس الدین خان د ډاګخانې آمر او مسئول یا د دې زمانې په ژبه مدیر وو. پوسته رسانان ئې هم درلودل چي که څه هم

پر ښنو به ئې رسائل وړل راوړل، خو د خپله وسه سره ئې دا کار پر مخ واهه. د پخوانی زمانې د مشهورو ډاګیانو څخه د مقام ډاګې نوم او د هغه ټبر خو زما تر زمانې پوري لا هم رارسېدلی وو. خو له بده مرغه اوس له اشرف البلاد څخه چي یو وخت لا دارالاماره هم وو خطونه نه رارسېږي.

د پوستي نظم او انتظام د امنیت شاهد او دلیل دئ. چیري چي امنیت تامین نه وي د پوستي خدماتو ښېلګه هم نه وي او چیري چي پوستي انتظام نه وي د هغه ځای پر امنیت هم اعتماد نه سي کېدای. دا بدمرغي له ډېرو کلونو څخه د هیواد په برخه ده.

ستا دي خدای تعالی روغ صورت او آرام ژوند په برخه کړي کله کله دي خط رارسېږي، او کله دي په تلیفون کي ږغ اورم. یو خط دي رالېږلی دئ په کوم کي چي دي یو څو پخواني یادګاري عکسونه رالېږلي وه. اما خوا مي د یادګاري عکسونو په نه رارسېدلو ډېره بده سوه، څنګه ئې کوې نن سبا خواشینوونکي خبري تر خوشحالوونکو ډېري سوي دي او لا پسي ډېرېږي.

د پوستي سیستم له شکایتونو څخه مي مقصد دا نه وو چي د ډېرو خطونو د وېشلو مکرر تکلیفونه درکړم، خو څنګه ئې کوې چاره نسته ما به وبخښې ستا ئې کور ودان. ښه ئې ویلي دي:

افغانرا که سلام دادی - چند تنګه تاوان دادی

تا دي خدای تعالی ژوندی او آرام لري، په مخه دي ښه.

مخلص هاتف

**د (۲۲) مخ پاته...**

... او تحصیل کرده طبقه یا قشر کي د ښځو د حقوقو له پاره په کافي اندازه ملاتړ موجود وو. په دې برخه کي د ویښ زلمیانو تاریخ او مبارزه څوک نه سي هېرولای. په بل عبارت، د کندهار بلوا دونه منزوي او نامحبوبه وه چي په هیواد کي هیڅ مشهور ملا او یا مذهبي مشرد دې بلوا ملاتړ و نه کړ. د دې مخالفت د نه شتون یو اساسي علت دا وو چي په دې زمانه کي په افغانستان کي ښاري او منځنۍ طبقه پراخه سوې وه، او دې طبقې او نورو ښاري ټولنو د حکومت له تصمیمه حمایت کاوه. په یوه کلام کي، د کندهار بلوا صرف یوه محلي حادثه وه چي کېدای سي د عصریت او مدرنتې پر خلاف یو شډل اکټ وبلل سي. دا بلواتر ډېره حده یو اني او احساساتي حرکت وو چي د نورو بلواګانو غوندي ئې د څو ساعته له پاره دوام وکړ. همدا علت دئ چي اکثرو افغان او خارجي لیکوالانو چندان توجه ورته نه ده کړې، او حتی مشهور کندهاري لیکوالان ئې هم نه یادوي.

څلرم، د مالیاتو لانجه هم درسته ده. بځرکي صاحب او ښاغلی دوپري ئې په تفیصل سره یادوي او باقي پاته لیکوالان اکثره له دوی څخه الهام اخلي. څرنګه چي په کابل کي د جشن مراسم په اګسټ کي لمانځل کېږي، خو د کندهار بلوا د ډسمبر پر ۲۱ باندي پېښه سوه چي په دې ترتیب قریب څلور میاشتي وروسته د کندهار بلوا وسوه. په دغو څلورو میاشتو کي په کندهار کي څه پېښې سوي دي، هغه درانه لوستونکي د بځرکي صاحب د ویښ زلمیانو په کتاب کي، چي په کافي اندازه معلومات ئې راغونډ کړي دي، میندلای سي. بځرکي صاحب دا ښیي چي په دې څلورو میاشتو کي محافظه کارو ملایانو او نورو ارتجاعي عناصرو په کندهار کي فعالیت کاوه، او د کندهار په ځینو محافظه کارو حلقو کي ئې پروپاګند کاوه، او ښایي د بلوا له پاره څه بند و بست هم نیول سوی وي.

عبدالظاهر ځرک

# څو شپې د طالبانو د امربالمعروف په دفتر کې

د طالبانو د حکومت په وخت کې يو شناخته کور ته راغلی، ول که ته په دوی کې شناخت لرې زما ورور ئې بېولی او د امربالمعروف دفتر له خوائې په محبس کې بندي کړی دئ.

د ذکر سوي دفتر نوم عامو خلکو هم دغه دفتر او هم ئې مسئولين منکرات بلل، ما ورته وويل چې څه ئې کړي دي، ول د فوټبال په بازي کې ئې نيولی دئ.

طالبانو په سټډيوم کې د فوټبال بازي بنده کړې وه، نو ځوانانو د شين غزي بابا د زيارت سره په چمنانو کې د فوټبال لوبې کولې خو طالبان چې به ورغلل دا هلکانو به وځغستل او طالبان به بيرته تش لاس خپل موټرانو ته وختل. خو نه هلکانو له فوټبال څخه لاس اخيست او نه طالبانو له دوی څخه.

يو وخت لا داسې هم پېښه سوه، چې د طالبانو تر ناکام هجوم وروسته يو څو شوخو هلکانو، د شاوخوا د دوی پر موټر د ډبرو وارونه وکړل او د موټر هينداري ئې ورماتې کړلې.

په دې سبا طالبانو د دغه عمل په عکس العمل کې د داسې تاکتيک څخه کار واخيستی چې دوی ئې ټوله بالفعل ونيول.

طالبان بې له موټره د شا د خوا د عادي خلکو په شکل چې اسلحې ئې پټې کړې وې پر راغل او نابېره ئې ونيول د هلکانو تعداد تقريباً څلوېښت تنو ته رسېدی، چې زموږ يو شناخته هم په دغو هلکانو کې وو.

هلکان ئې ټوله په محبس ننه ايستل، تصادفاً په دې سبا د هرات د ګمرک رئيس ملا کريم الله چې يو بل نفر ورسره وو سهار کور ته راغلل. ملا کريم الله زما د ډېر وخت شناخته وو، د حاجي اخند زوی وو پلار ئې د مجاهدينو په وخت کې د مجاهدينو مختلفو جبهو ته پيسې وېشلې دا پيسې به اکثره له عربي ممالکو څخه د مجاهدينو سره د مرستې په نيت را استول کېدې، څرنګه چې حاجي اخند يو پاک نفسه او اعتمادي شخص وو، نو هغه خلکو په ده اعتماد او باور کړی وو.

زوی ئې ملا کريم الله هم پلار ته سوی وو نو په دې خاطر ملا محمد عمر دی د هرات د ګمرک رئيس وټاکی. په هغه وخت کې زموږ د تجارانو ډېر مالونه د هرات پر ګمرک راتلل او د هرات د ګمرک د محصول سند په ټول افغانستان کې اعتبار درلودی او څوک ئې مخ ته نه سوای درېدلای په اوسني حکومت کې چې په هرات يا نيمروز کې محصول وسي تر کابله لس ځله راګرځول کېږي او په مختلفو نومو له تاجر څخه پيسې اخيستل کېږي. نو ملا کريم الله چې به کندهار ته راغلی د باندار او پوښتني له پاره به کور ته راتلی. د چايو تر څښلو وروسته ئې

انډيوال رامعرفي کړ، چې دا ملا غازي نومېږي.

ملاغازي د ملا محمدعمر له نږدې انډيوالانو څخه وو او ويل کېده چې کله طالبانو کابل ونيوی د دوی اول اقدام د ډاکټر نجيب نيول او وژل کېدل وه. نو ملا غازي هم ورسره وو او اول ټکان ملاغازي پر ډاکټر نجيب وکړل.

تر مجلس وروسته د خدای په امانۍ په وخت کې ملا غازي د کار او خدمت راته وويل. ما ورته وويل چې زما يو شناخته امربالمعروف والا نيولی دئ. جرم ئې فوټبال دئ که دي دغه راته راايله کی. هغه وعده وکړه، ول ته ماښام ورسه زه به ئې رئيس ته ووايم.

د سردار مدد چوک په اوسني احمدشاهي مارکېټ کې د امربالمعروف دفتر ته ورغلم. رئيس ئې د مولوي عبدالغفور په نامه يو ملا وو، چې د پاکستان له پښتنو څخه وو، پوښتنه مې وکړه، تشريف ئې نه وو راوړی يو طالب راته وويل دلې ورته کښېنه اوس راځي.

زه له دفتر څخه د سرای غولي ته راووتلم او ورته انتظار سوم. د سرای په شمالي طرف کې دوه کانټينره پراته ول هغه خلک چې د دوی په ګومان مجرمان ول هغه ئې په دغه کانټينرانو کې ساتل وروسته ئې محبس ته استول او ګويا د کانټينرانو څخه ئې د توقيف کار اخيستی. دلته هغه خلک راوستل کېدل، چې ږيرې به ئې خريلې او يا لنډې کړې وې يا هغه خلک چې د جماعت پر وخت مسجد يا جامع ته نه ول تللي، شرعي عذر دلته مد نظر نه وو نيول سوی.

داسې مې هم واورېدل چې يو هندو په مخه ورغلی وو، دوی ورته وويل چې ولې لمانځه ته نه يې تللی هغه ورته وويل چې زه هندو يم. طالب ورته ويلي وه، چې زما پلار سې ولاکه ولاړ سې. د موسيقۍ اورېدونکي، ورقي او سطرنج کوونکي، قمارباز، سګ وان او د دوی په اصطلاح ببرڅتي ټوله دلته راوستل کېدل. ببرڅتي هغه خلک ول، چې د سر وړېښتان ئې غټ وه. طالبانو يو مونی بس موټر درلودی چې څو واره دا موټر د خلکو ډک راوستل سو، دا تماشا مې د شپې تر ډېره وکړه خو مولوي صاحب نه راغلی او زه له دفتر څخه راووتلم کور ته راغلم.

سبا ماښام بيا نوموړي دفتر ته ورغلم او د دوی د حکومت د المپيک رئيس حاجي عصمت الله طرزی مې هم د ځان ملګری کړ. دفتر ته چې ورغلم، مولوي صاحب ناست وو تر روغبړ او تعارف وروسته ئې د خدمت راته وويل. ما ورته وويل چې زما د کار په باره کې ممکن ملاغازي ستا سره خبري کړې وي. دی مسکی سو ول هو هغه خو پر ما ډېر ګران دئ او زما د حج انډيوال وو.

ما ورته وويل چې زما يو دوست د عبدالصمد په نامه په محبس کې بندي دئ او داسې مې اورېدلي دي چې تاسې د دوو مياشتو قيد سزا ورته ټاکلې ده. ده ول هو هغه ورځ ئې زموږ پر موټر د ډبرو وارونه کړي ول او زموږ بې اجازې ئې فوټبال کړی دئ.

يو طالب ته ئې ور ږغ کړه، چې ته هغه دوسيه راوړه. يو لوی کتاب ئې راوړی او د مجرمينو دوسيه ئې راته راواړول په فهرست کې ئې "ګين" ليکلی وو. ول دغه دئ د ګين د بنديانو ليست. هغه نوم ئې پيدا کی ما ورته وويل چې زما مطلوب هم دغه نفر دئ. مولوي صاحب راته وويل چې ته ئې ضمانت کوې؟ چې دوی به بيا دا کار نه کوي، ما ورته وويل چې د دا يوه نفر ضمانت کوم او زه خاص د دغه يوه نفر له پاره راغلی يم نور هلکان نه زه پېژنم او نه ئې ضمانت کوم.

مولوي صاحب راته وویل چي یو نفر خو زه نه سم ایله کولای یا به ټوله ایله کېږي یا به دا یو نفر هم ناست وي. ځکه د آخرت په ورځ به مور خدای ﷻ ته ځه جواب وایو، خدای ﷻ به راته وایي، چي هغه یو نفر دي ایله کی او دا نور مو نو ولي نه ایله کول.

ما ورته وویل چي مولوي صاحب دا به په دنیا کي نه وي پېښه سوې، چي سړی دي یو څوک نه پېژني او دی ئې ضمانت کوي که دي خوښه ده را ایله ئې که، که نه کېږي زه پر خپله تړه ځم او ملاغازي اخند ته وایم چي زما کار، و نه سو.

د ملا صاحب څخه راووتلم او کور ته راغلم. سبا مي د ورځي ملاغازي ته تلیفون وکی او ورته ومي ویل چي هغه زما کار نه دئ سوی. ده راته وویل چي ته نن شپه بیا ورسه زه ورته وایم.

د ماښام تر لمانځه وروسته بیا زه او حاجي عصمت الله طرزی ورغلو او په انګړ کي ئې کښېنولو. مولوي صاحب نه دئ راغلی او نور عمله ئې په کار بوخت دي. یو سړی عارض وو، چي زما ورور کوکه کوي یعني کوچنی دوکاندار دئ تاسي دلته بندي کړی دئ، مسئول کس ورته وایي، چي هغه خو د جماعت لمانځه ته نه وو تللی. دی خوار کی په ژړغوني آواز ورته وایي، برایي مي مور تر سهاره ویښه وه او په ځپل زوی ئې ګروم وو که مو دا مهرباني وکړه او په لاس مو راکئ، طالب ورته وویل چي ته لمونځ راته تېر که، په لمانځه کي څو فرض، واجب او سنت دي؟ دا هلک وارخطا سو او په ګنګوره ژبه ئې لړ لړ شیان ور وښوول چي د طالب قناعت ئې حاصل نه کی.

امر وسو، چي د ده ورور را ایله کی او پر ځای ئې دی بندي کی. د ه خوار کي لا اول زړه ته نه لوېدل ده چي ول مسخرې راسره کوي مګر امر تطبیق سو.

هغه ږیر خریلي خلک چي په پاکستان کي ئې ژوند کاوه او غوښتل ئې، چي کابل ته ولاړ سي یا په کندهار کي پاته سي دلته به راغلل او دوی به تصدیق خط ور جوړ کی او دا سړی به تر هغه وخته معاف وو، تر څو چي ږیره ئې د طالبانو د خوښي اندازې ته رسېدل.

یو څو کسو ورور په دې بهانه د پاکستان څخه راوستلی وو، چي معافي خط در جوړوو کابل ته به ولاړ سو. د ده په غیاب کي ئې طالبانو ته ویلي وه، چي زموږ ورور هیروئیني دئ، د هیروئیین سزا په محبس کي شپږ میاشتي بند تېرول وو. د دې بېچاره سره ما ډېر مجلس وکی او د هیروئینو آثار هیڅ نه وه پکښي او دا ئې راته وویل چي کابل ته ځم. کله چي طالبانو موټر د خلکو ډک کئ او د محبس پر لور رهي کېدی پر ده ئې هم ږغ وکی، چي راځه. دا سړی حیران سو ول چیري؟ هغو ورته وویل چي محبس ته، ته هیروئیني یې.

د ده زاریو او انکار فایده و نه کړه او موټر ته وخېژول سو. وروسته ما ته معلومه سوه، چي ورونو ده ته چم جوړ کړی وو او شپږ میاشتي ئې قید کړ.

پسله ډېره انتظاره او قسم قسم دلخراشه ننداړو څخه وروسته د امر بالمعروف رئیس هم راورسېدی. تر روغبړ وروسته ئې د حاجي عصمت الله څخه ګیله شروع کړه، چي پرون په ستېډیوم کي هلکانو په وردی کي فوټبال کړی دئ. موږ تاسي ته ویلي دي، چي هلکان به په پرتوګانو کي لوبي کوي. که بل وخت دا عمل تکرار سو ټول دلته بندیانوم. وروسته مولوي صاحب څو طالبان راوغوښتل او هغه چم ئې ور

وښودی چې مجرم باید فرار و نه کړي.

د کندهار شوخو ځوانانو به اکثره د طالبانو څخه وځغستل او طالبان ئې ډېر په خو اچولي ول. مشر ورته وویل چې د لاس ګوتې به د دوی په لستوني ورننه باسئ بیرته به لستوني د دوی په خپل لاس راوګرځوئ بیا نو فرار نه سي کولای. یو مسافر ځوان ئې هغه وخت محبس ته واستوی، چې تازه له ایران څخه راغلی وو او په ټکسي موټر کې د کابل اډې ته روان وو. ږیره ئې کوچنۍ وه بېچاره چې هر څه عذر او زارۍ ورته وکړې، چې زه په اېران کې وم هیڅا ئې نا ره نه واورېدل او نه د ټکسي وان پر سورنا چا غوږ نیوی، ټکسي والا شکایت کاوه چې زما کرایه پر پاته ده او د ده د سامانو بکس زما سره دئ.

د مولوي صاحب سره مې روغبړ وکی او خپله مطالبه مو ور وړاندې کړله مولوي صاحب بیا زړه نا زړه وو حیران وو چې څنګه وکړي. د یوې خوا زموږ واسطه زوروره او د بلې خوا څلوېښت نفره ایله کول مولوي صاحب بیا وویل چې تاسې سبا راسئ.

سبا غرمه حاجي عصمت الله د المپیک رئیس ورغلی، نفر او مکتوب ئې محبس ته ورسره واستول او ټوله نفر ئې بې له ضمانته ور ایله کړي ول.

د طالبانو هر کار ته هم باید په منفي نظر و نه ګورو. بعضې کارونه ئې د ټولنې په ګټه ول، لکه د هیروئینیانو مخنیوی، د چرسو پر څکولو کنترول، امنیت راوستل او د رشوت مخنیوی، په ډېرو کمو امکاناتو له کجکي څخه تر کندهاره د برېښنا راوستل او داسې نور...

**د (۸۹) مخ پاته...**

او وفاداره سپی ولري چې حتی نور شپانه هم غواړي چې خپلې رمې د نوموړي شپون سره څېرمه وڅري، څو د هغوی رمې هم په امن کې وي.

نو بناءً د کریتو څو نورو ملګرو هم غوښتل چې د ارچیدموس سره خپله انډیوالي ټینګه کړي او له کریتو څخه ئې وغوښتل چې ارچیدموس د دوی دفاع هم وکي. ارچیدموس د کریتو سره خپل ملکفیت ته دوام ورکی، او په اخر کې دا ثابته سوه چې نه یوازې کریتو بیا چا په عذاب نه کی، بلکې ملګري ئې هم له هر راز جنجال څخه خلاص سول. خو کله چې به یو چا ارچیدموس په دې متهم کی چې د شخصي ګټو په خاطر ئې د خپل باس- مانا کریتو - خوا نیولې ده او شخصي ګټو دې ته اړ ایستلی دئ چې د خپل باس د کارونو په سمبالولو او خدمت کې فوق العاده جدیت وښیې. ارچیدموس به دا راز جواب ورکاوه: «ستا په نظر کم کار لویه بې شرمي او سپکوالی دئ- ایا د داسې شریفو خلګو خدمت چې زموږ سره ئې ښه کړي دي، او که د بدانو یاري؟ ایا دا به ښه نه وي چې د دې ډول خلګو د دفاع په منظور د هغوی د دښمنانو پرخلاف، کم چې بد خلګ دي، جنګ اعلان سي؟ ایا دا به درست کار وي چې د نجیبو او محترمو خلګو پر ضد اقدام وسي، او هغوی خپل دښمنان کړای سي، څو د بدو خلګو ملګرتیا ترلاسه سي؟» له دې راوروسته، کریتو له ارچیدموس سره د یارۍ قرارداد وکی، او دغه راز د کریتو ملګرو هم ارچیدموس ته سخت احترام کاوه.

نذیراحمد تائي

# شهید عبداللطیف (آشنا)

# له محصل توبه تر مرستیالتوبه

له نن (۱۳۹۴/۱۱/۱٦) څخه نونس (۱۹) ورځي کم دوه کاله مخکي یعني د ۱۳۹۲ هـ ش کال د حوت میاشتي پر ۶ نېټه مي په کندهار کي د لومړي ځل له پاره د شهید عبدالمجید بابي د شهادت ځلرمه تلینه د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست د طلوع افغان ورځپاڼي له لاري د قلم په نوک سره ولمانځله، د طلوع افغان ورځپاڼي ښاغلو کار کوونکو هر یوه بسم الله غرني صاحب، فضل محمد (فضل الباري) او نصیراحمد جان ئې کور ودان مضمون ئې بې له کمښت یا زیادښت څخه و اخبار ته د چاپ له پاره وسپاری، په لیکلي مضمون کي ما نه یوازي د حاجي عبدالمجید بابي، بلکي د عبداللطیف اشنا او څو نورو دا شان نومیالیو د شهادت یادونه کړې وه او په دې الفاظو سره له نن څخه پوره څلور کاله دمخه په کندهار کي د کندهار وتلو او ښاغلو چهرو یو په بل پسي لکه حاجي عبدالمجید بابي، عبداللطیف اشنا او... د شهادت جام نوش کړ. "انالله وانا الیه راجعون"

خو د دې ویر او ماتم بلي لمبې او سور اور یوازي او یوازي د هغو شهیدانو کورنیو یعني بورو سوو مېندو، ورارو سوو خویندو، کونډي سوو مېرمنو، یتیمو اولادونو او ورونو ته پاته سو نه بل چا ته او نه هم چا د دې ویرجنو کورنیو سره د هغوی د زړه درد آن تر یوه لنډ وخت پوري لا شریک نه کړ.

هو! دا چي زموږ د کندهاریانو دې بې تفاوتۍ او دولتي جګپوړو چارواکو دې بې غورۍ ډېر خواشینی کړی وم، خکه مي په یاد لیکلي مضمون کي د خودګش بېګانه پرست جمله هم ځای کړې وه. د مضمون له نشر څخه ښه ډېر وخت وروسته پر همدغه ننۍ کوټه ګۍ باندي چي موږ او تاسي پکښي ناست یو د دې ریاست مقام او نورو غټو چارواکو له خوا د شهید عبدالمجید بابي د غونډو تالار نوم کښېښوول سو او بس. خو زه پوه نه سوم چي آیا دا نوم اېښوونه د تېر لیکلي مضمون له اسیته څخه وه او که د کوم ترس یا بېري له مخي؟ ولي دا په دې چي زموږ د یو بل نومیالي خوان فرهنګپال ادیب لیکوال او نسبتًا د څه ښې چوکۍ خاوند د شهید عبداللطیف اشنا هم په لیکلي مضمون کښي یادونه سوې وه، خو تر پرون ورځي پوري د هغه شهید د نوم او نښان یادونه هیچا و نه کړه، څو دا دئ نن ورځ په کندهار کي د لومړي ځل له پاره زموږ د

ځوان نسل ادیب ښوونکي او د کندهار ولایت د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست رئیس صاحب ښاغلي حضرت ولي هوتک په خلاقانه ابتکار او خاصه پاملرنه د نومیالي شهید عبداللطیف اشنا د شهادت پنځم تلین د هغه شهید د یاد په خاطر د دې ریاست په انګړ کې دننه لمانځل کېږي، چې زه په خپل وار سره له پوهیالي هوتک صاحب څخه یوه نړۍ مننه کوم، همدا شان د ښاغلي حضرت ولي هوتک دا وطنپالني او بشر دوستۍ احساس به د خاطرې په څېر د ګور تر پولې پورې په زړه کې ساتم.

**زما او اشنا د انډیوالۍ د تناو تړاو:**

موږ یوه کوچنۍ کورنۍ وو، چې د محمد ظاهر شاه د واکمنۍ په وخت کې له کندهار څخه کابل ته کډه سوو، په لومړیو وختونو کې مې پلار کابل پوهنتون ته نژدې د (ده نو ده بوري) په نوم کلي کې هستوګنه شروع کړه، څو وروسته – وروسته مو په کوټه سنګي کې د سرای هراتي سره ځاني کور رانیوی، له دې څخه ښه ډېر وخت تېر سو یعني د خلقیانو او پرچمیانو د واکمنۍ په وخت کې یو تکړه ادیب او خنده رویه ځوان له کندهار څخه کابل پوهنتون ته راکامیاب او هلته په پوهنتون کې شامل سو، دا په انډیوالي کلک او خنده رویه ځوان عبداللطیف اشنا نومېدی، تاسي ټولو ته ښه معلومه ده چې کندهاریان خپل تر منځ د جمعې شپې د توري او تېکې باندار هیڅ وخت او هیڅ ځای نه پرېږدي، همدا وجه وه چې د لږ وخت په تېرېدو سره عبداللطیف اشنا په کابل کې زموږ د کندهاریو ځوانانو په ډله کې راداخل سو.

عبداللطیف اشنا یو ډېر باادبه، خوش خلقه او بادیانته ځوان وو، ځکه زموږ ټولو ملګرو د اشنا سره په لږ وخت کې ډېره مینه او محبت پیدا سو، چې دا هر څه د اشنا صاحب خنده رویي، کلکه انډیوالي او بادیانت توب وو.

هو! کومه جمعه چې اشنا صاحب به په باندار کې حاضر نه وو، نو ټول ملګري به یو راز نیولي غوندي ښکارېدل، دا په دې چې د اشنا هغه ټوکې او خنداوې به نه وې، د انقلاب ناخوالو ورځ په ورځ زور اخیستی، موږ انډیوالان هم شو په شو سوو، څوک یوې خوا او څوک بلې خوا ته ولاړل، زه هم د کندهار له لارې کوټې ته مهاجر سوم، د رباني د قدرت په وخت کې له کوټې څخه د یو کار له پاره کندهار ته راغلم، دلته خبر سوم چې عبداللطیف اشنا په حضرت جي بابا کې د سنځر په نامه دواخانه لري، ما هم په حضرت جي بابا کې یاده دواخانه پیداکړه، دوکان ته چې ورننوتلم، ګورم چې اشنا صاحب پر پارچال ناست دئ، اشنا بیا هم د پخوا په شان حتی تر هغه زیات خپل صمیمیت ښکاره کړ، د تېر په شان زما او اشنا ټوکې او خنداوې یو وار بیا ژوندۍ سوې، څو ورځې وروسته زه دوباره کوټې ته ولاړم، زما تګ او راتګ کندهار ته وخت ناوخته جریان درلود او ده (اشنا) په خپل سنځر درملتون کې سنګر نیولی وو.

څه موده وروسته زه و خپل اصلي ټاټوبي کندهار ته له کوټې څخه راکډه سوم، دا وخت د طالبانو د واکمنۍ نسبتاً اخیري ورځې وې، اشنا صاحب پر سنځر درملتون سربېره په سدوزو کوڅه کې د حاجي ناني د درملو په سرای کې د طبي دواوو خرڅولو عمده فروشي پرانیستله، دا وخت ما هم په کابل بازار کې د شین غزي اصحابي په نامه دواخانه پرانیستې وه، که څه

هم ما د دوکان درمل د کوټي او کراچي له کمپنیو څخه پوره کول، خو د عاجل ضرورت په وخت کي به ما خپلي دواوي د اشنا صاحب څخه رانیولې. دا په دې خاطر چي یو خو اشنا صاحب زما د پخوا انډیوال وو، څکه مي د ده سره طبع لګېدله او له بله پلوه اشنا صاحب ښه اصلي دواوي خرڅولې، پر وطن او خلګو مین وو او رښتینی خدمت ئې کاوه، دی به هم وخت ناوخته زما و دوکان ته راتلی، د طالبانو حکومت په بدلون سره اشنا صاحب دوکانداري ورونو ته وسپارله او خپله د هغي میني له امله چي د وطن او وطني بچیانو سره ئې په سینه کي درلوده، په کندهار پوهنتون کي رسمي دولتي وظیفه اشغال کړه، هلته ئې کندهاري بچیان په ډېر اخلاص سره د وطن آبادۍ په لار کي وروزل، تر څه وخت وروسته ده له پوهنتون څخه د کلو پراختیا ریاست ته مخه کړه او د هغي ادارې د رئیس په حیث وګومارل سو.

اشنا صاحب په دې دولتي دنده کي ټولو کندهاریانو ورونو ته وښوولة چي لطیف اشنا کټ مټ د خپل خدای بخښلي پلار عبدالباري اشنا پر قدم، قدم ایږدي، کندهار او کندهاریانو ته د زړه له صدقه کار کوي.

لطیف اشنا که څه هم قانوناً دا صلاحیت نه درلودی چي د انکشاف دهات ادارې دارایي دي د یوه بل ریاست په پروژو کي وکاروي، خو پر هغه سربېره ئې بر علاوه د کلو پراختیا ریاست د پروژو څخه د کندهار ښاروالۍ ریاست سره ملا وتړله یعني ده د کلو پراختیا ریاست په دارایي د کندهار ښار د بر ښناکوټ او منزلباغ جادې ټول فرعي سړکان همداراز د کندهار عالي دارالمعلین څنګ ته د ده خواجې او زاړه ګمرک ادې اتصالاتي فرعي سړک په پاخه ډول ورغول.




**اشنا د ولایت مقام د مرستیال توب په وخت کي:**

د ده مقرري د کندهار ولایت مقام د مرستیال توب په توګه په بل سبا ورځ د مبارکۍ له پاره ورغلم، اشنا صاحب ته مي هغه وینک سن خودرنګه قلم چي ما تقریباً نیمه پېړۍ یعني څه کم پنځوس کاله ساتلی وو، د مبارکۍ په شېرینۍ کي د ځان سره راواخیستی، اشنا چي زه ولیدلم، خپل پټو ئې ژر پر اوږو واچاوه، تر سلام علیک او روغبړ وروسته د خبرو او مجلس په اوږدو کي مي د ځان سره را اخیستی قلم د جېب څه راوکیښ او ده ته مي ونیوی، د قلم تاریخچه مي هم ورته وویله، ده بیا هم د پخوا په شان راته وخندل او زیاته ئې کړه، تاسي صاحب دا دئ وینې ئې چي تراوسه مي خپل پټو له اوږو څخه نه دئ ایښی او هغه د دې له پاره چي زړه مي راته وایي سړیه! دا خلګ به خطا وتلي وي، په پام کي به ئې بل څوک وو، اوس به بیرته جواب راکړي او اوس به جواب راکړي، خو تا بیا ما ته د چوکۍ شېریني او مبارکي راوړې ده، داسي نه چي هغه ته هم په خپله مبارکۍ کي پښېمانه سې او شین د خندا ولاړې.

شهید عبداللطیف اشنا د ولایت مقام د مرستیالۍ په ډېر لږ وخت کي د کندهار او کندهاریانو له پاره خو را ډېر کار وکړ، خو اجل نامرده پرې نه ښووی چي اشنا دي کندهاریانو ته نور هم خدمت وکړي، خو زه وایم چي موږ له ده څخه داسي خدمت نه غوښتی چي هغه دي د اشنا صاحب د سر په سودا وي، په اخیر کي د اشنا شهید روح ته د خپلي دوعاګاني نثاروم، دښمنان دي ئې مختوري او پاته شوني دي ئې حق تعالی (ج) د اوږده او خوشحاله ژوند خاوندان ولري.

استاد بېنوا:

# نوې ننداره

دا د طبيعت قانون دئ، چي هر زوړ خپل ځای "نوي" ته پرېږدي، او زاړه به ځي او نوي به راځي.
بېوال د بڼ زړې ونې باسي پر ځای ئې نوي نهالونه کښېنوي.
خزان د ونو زړې پاڼې رژوي او پسرلی د هغو پر ځای نوې تازه پاڼې شنې کوي.
د زړو کلاوو زاړه دېوالونه نړېږي او پر ځای ئې نوي عصري کوټې ودانېږي.
همدا راز د زړو فکرونو، زړو رواجونو ځای نوي فکرونه او نوي رواجونه نيسي.
هو! د همدې طبيعي قانون په اغېزه په ټولو کايناتو کي تل يو ډول تحول ليده کېږي، کله پر لويو تورو غرونو د ژمي د سپينو واورو د جمود څادر غوړېدلی وي، او کله ئې بيا په پسرلي کي د ونو تاج پر سر نيولی او لمن ئې له رنګا رنګ ګلونو ډکه وي.
کله د دنيا پر يو ګوټ تياره او پر بل رڼا وي، او کله بيا تيارې پسي ځي او يا د تيارې پای رڼا وي.
يو ګړی د غم ساندي اروېدلي کېږي، او بل ګړی بيا د سرور او خوښۍ سندري.
يو وخت آسمان په تورو اوريځو پټ وي، او بل وخت ئې بيا مخ د هينداري په شان روڼ ښکاري.
يو زمان سمندرونه توپاني وي، تر خولې د مستۍ ځګونه باسي، خو بل زمان بيا د آرامو ماشومانو په څېر د سواحلو په لمنو کي آرام غځېدلي پراته وي.
دا ټول ثابتوي چي:
[تحول او بدلون د طبيعت د اقتضايي قانون اساس دئ]، ځکه نو لازمه ده چي د زاړه ژوند زړې نغمې خاموشي کړه سي او د نوي ژوندون نوي سندري ورغولي سي.
همدا راز نو د نوي ژوند په صحنه کي بايد زړه ننداره ختمه سي او د هغې پر ځای نندارچيانو ته د نوي ژوند د رمزونو نوې ننداره وښوولـه سي.
هو! نور نو موږ ته نه ښايي چي د خپل نوي ژوند په نوې صحنه کي زړې ننداري وګورو.
دا د طبيعت د اقتضايي قانون مخالفت دئ او د طبيعت د قانون مخالفت کول د ځان محوه کول دي.
موږ بايد د طبيعي قانون سره سم ځانونه وخوځوو، او ځان ته د نوي ژوند د نندارتون ور پرانيزو، داسي و نه سي چي د نوي ژوند نندارتون پرانستل سي او موږ لا په همهغه زړو ننداړو بوخت پاته سو.
راځئ!
نوې ننداره زموږ په انتظار کي ده.

